# نیو لیک (فهرست)


| سرلیـــــــک | مـــــخ |
| --- | --- |
| یادښت | الف |
| پښتویه(گرامر) | ۱ |
| لومړۍ برخه ــ غږ پوهه (فونو لوژي) : | ۱ |
| دویمه برخه ــ گړ پوهه(مور فولوژي) : | ٦ |
| تـــوم گړ پوهـــه | ٦ |
| نوزي (جنس) | ۷ |
| پیر(حالت) | ۱۰ |
| ناوښتونی نومونه | ۱۲ |
| شیز نوم(اسم) | ۱۳ |
| ستاینوم(صفت) | ۱٤ |
| شمیرنوم(عدد اسم) | ۱٦ |
| نومځري (ضمیر) | ۱۸ |
| ځانگړي نومځري (شخص ضمیرونه) | ۱۸ |
| تولنو ځري (ملکی ضمیرونه) | ۱۹ |
| نغوتنومځري (اشاري ضمیرونه) | ۱۹ |
| پوښتنو ځري (استفهامی ضمیرونه) | ۲۰ |
| وییکو ځري (اداتی ضمیرونه) | ۲۱ |
| اړیکو ځري (ارتباطی ضمیرونه) | ۲۲ |
| غبرگون نومځري (انعکاس ضمیرونه) | ۲٤ |
| ناټیکو ځري (ابهامی ضمیرونه) | ۲٤ |

| سرلیک | مخ |
|---|---|
| ګډ تولنومځري ( اشتراکي ضمیر | ۲۷ |
| تول ـ ځانګړي نومځري ( شخصي ـ ملکي ضمیرونه ) | ۲۷ |
| لومړي کړ اوونه ( تمرینونه ) | ۳۲ |
| دویم کړ اوونه ( تمرینونه ) | ۳۳ |
| د کړ ګړ پوهه یا د فعل صرف | ۳٤ |
| کړ نوموونکی ( مصدر ) | ۳٤ |
| د کړ اوړونې توکونه اوار ځونه | ۳۵ |
| اوړونونه ( ګردانونه ) | ۳۹ |
| د تیرمهال کړ اوړون | |
| روز دنې تیرمهال ( اعتیادي ماضي ) | ٤۱ |
| لنډ تیرمهال ( قریبه ماضي ) | ٤۲ |
| لرتیرمهال ( بعیده ماضي ) | ٤۳ |
| ګومانې تیرمهال ( احتمالي ماضي ) | ٤٤ |
| ارمانې تیرمهال ( تمنايي ماضي ) | ٤۵ |
| اړوتې تیرمهال ( شرطي ماضي ) | ٤۷ |
| توانې تیرمهال ( امکاني ماضي ) | ٤۸ |
| ټینګاري تیرمها ل ( تاکیدي ماضي ) | ٤۸ |
| هیښنې تیرمهال ( تعجبي ماضي ) | ٤۹ |
| پوښتنې تیرمهال ( استفهامي ماضي ) | ٤۹ |
| نالیزند کړ ( لازمي فعل ) | ۵۰ |
| بشپړ تیرمهال ( مطلقه ماضي ) | ۵۰ |

| سرلیـــــک | مـــخ |
|---|---|
| خبري تيرمهال | ٥٠ |
| لنــــنډ | ٥٠ |
| لــر | ٥١ |
| نابشپړ | ٥١ |
| روز دنی | ٥١ |
| ارمانی | ٥١ |
| توانی | ٥٣ |
| گومانی | ٥٣ |
| تینگاري | ٥٤ |
| پوښتنی | ٥٥ |
| اړوتی | ٥٥ |
| د اوسمهالکړ اوړون | ٥٦ |
| بشپړ اوسمهال– خبري | ٥٦ |
| اړوتی | ٥٧ |
| ارمانی | ٥٧ |
| پوښتنی | ٥٧ |
| هیښنی | ٥٧ |
| توانی | ٥٨ |
| امري | ٥٨ |
| تینگاري | ٥٨ |
| غوښتنی | ٥٩ |

| سرلیک | مخ |
|---|---|


| | |
|---|---|
| گومانی | ٥٩ |
| نابشپړ اوسمهال | ٥٩ |
| اړوتی | ٦٠ |
| ارمانی | ٦٠ |
| پوښتنی | ٦٠ |
| هیښنی ــ گومانی ــ توانی ــ امري ۰۰۰ | ٦١ |
| نالیزند ( تل ــ ) ــ بشپړ اوسمهال | ٦٢ |
| خبري ــ اړوتی ــ ارمانی ۰۰۰۰ | ٦٢ |
| نابشپړ اوسمهال | ٦٣ |
| خبري ۰۰۰۰ | ٦٤ |
| د اوسترمهالکړ اوړون ( د مستقبل فعل گردان ) | ٦٥ |
| نالیزندخ ــ ولاړ ــ | ٦٥ |
| دکړ رغاونی ( ساختمانی ) بڼولونه | ٦٦ |
| یوستوي ــ بیلښتی ( ساده ــ اشتقاقی ) | ٦٦ |
| خواپرخوا ( سست ترکیب ) | ٦٧ |
| ترښتی ( ترکیب ) | ٦٨ |
| دویمه برخــــه : | ٦٩ |
| نااوړیدونی کړونه | ٦٩ |
| کړولونه (قیدونه) | ٦٩ |
| وییکی ( ادوات ) | ٧١ |

| سرليــــك | مــــخ |
|---|---|
| اړيکوييکی ــ ورتنی وييکی ــ تړوييکی | ٧١ |
| تولوييکی ــ سرېلونه | ٧٢ |
| ٣ـ کــــــړ اوونه (تمرينونه) | ٧٨ |
| ٤ـ کړ اوونه | ٧٩ |
| دپښتو گړونو انځورليك | ٨٠ |
| د ريمـــه برخـــــه : | |
| غونډ له پوهه (نحو) | ٨١ |
| غونډ له (جمله) | ٨١ |
| دغونډ لی جوړ ښت | ٨١ |
| دغونډ لی رغنده توکونه | ٨٥ |
| اوډ ون (ترتيب) | ٨٧ |
| دغونډ لی بشپړ اند توکونه (اهنگ ــ خج ٠٠٠٠) | ٨٨ |
| داينس اوايښونی سمون | ٩١ |
| نومواله اوکړ واله غونډ له | ٩٣ |
| دغونډ لی مانيز ډولونه | ٩٤ |
| دغونډ لی جوليز ډولونه | ٩٥ |
| يوستوي غونډ له | ٩٥ |
| غبرگغونډ له | ٩٦ |
| گډه غونډ له | ١٠١ |
| گډ لی غونډ له | ١٠٣ |

| سرليك | مخ |
|---|---|


| | |
|---|---|
| گرنې ( اصطلاحات ) | ۱۰۵ |
| غونډ له پوهيزه شننه ( نحوي تجزيه ) | ۱۰۷ |
| کړاوونه | ۱۱۵ |
| نوې نومونې | ۱۱۷ |
| وېي پانګه | ۱۳۲ |
| اخځليك | ۱۵۷ |

## یادښــــــــت

دنوي او زاړه ترمنځ یوه نه شلیدونکې شخړه یو دیالکتیکي قانون دی. هر زوړ شیز اوپدیده په خپل ځان کې دننه دیوه ورسره نوي اړ پیچ (ضد) زېږي روزي او په هغه دې دود اودوی د وګړنې ټولنې بشپړتیا یې بهیر مخ پر وړاندې درومي اولــه دې سره یې انداوږوهه. په دې توګه له مهال تیریدنې او ځانګړو ځانې او جهانې اړونو سره سم بشري پوهنه تل بدلون اونوي کېدون مومي او همدغه بدلون اونوي کېدون یــې بشپړتیایې تګلوري ورسیخوي.

زموږ په وروسته پاتې ټولنه کې دنورو بشري پوهنو په لړ کې ژبپوهنه هم ځــوي دودیدونکې ده او زموږ له ټولنیزو اړونو سره سم یې یو رنګ لاسم دود نه وي موندلـــی چې په نوره نړۍ کې هغه بیا دوخته زوړ وي. که څه هم لږ ترلږه شل کاله پوره کېدونکي دي چې نوي ژبپوهنې دادبپوهنځي له لارې زموږ هیواد ته سررادننه کړې خو بیا یـــې هم نه یوالحس دزړې دودیزي ژبپوهنې اوښوونې ځای نه دی نیولی چې لاکوړنه یې ثرې ســر هومره هم نه دي مسک کړي.

دعبدالاحد یاري دنوي ژبپوهنې څولوستونه اولیکنې لاد شاګردانو مغزو ته سمې نه وې رسیدلې چې درښتین ژبښودنې بیاتول افغانستان نیولی و که له الهامه تېرشو، دپښتو ځانګې پازوال استاد شاکر دنوي ژبپوهنې دپېښاوو په توګه نه دومره اکادمیکـه زده کړه اوسمبالتیا درلوده اونه یې ورسره لږه کې زړه ورتیا چې هغه زړه ژبښودنــــه لږ ترلږه له پوهنځي څخه وباسي. ده چې دژبپوهنې مؤسس او پښتو ځانګې دژبنیو څېړنو او ښوونې بشپړ مونوپول یې په لاس کې وله (( فونیم وځه ته وایی ـ مورفیم وځــه ته وایی؟ )) پرته نه نور څه زده وو اونه یې ترهغه زیات څه وړاندې کړای هــــول.

نو په دي توګه به ترې پخپله د پښتو ژبپوهنې یاپښتو پښوونې په باب څه هیله شوي وای ·
د تېزي نوي ژبپوهنې (د پښتو ټولنې د ۱۳۴۴ خپرونې) او د پالوال نوي مصدر (د ادبپوهنځي
د ۱۳۵۰ خپرونې) بیاهم زاړه غوزونه یوڅه وښکول او دایې لږ تر لږه وښووله چې نوي
ژبپوهنه یاپښوونه څه مانا!

ما د ژبپوهنې د یوه نوي زده کوونکي او پښتو ګړ د وده څېړونکي په توګه د سویس
له زده کړونه له بیرته راستېدو سره له زړې ژبپوهنې او زړې ژبښودنې سره یوې مخېزې
نه پخلا کېدونکې سرغړاوي ته راود انګل او خپله لومړۍ دنده مې داوبلله چې له پښتو څانګې
څخه همدومره د زړې ژبښودنې تخریبلز د یوم لکه کوم کار چې په دري څانګه کې الهام او
نګهت کړي دي او تر خپل مسلکي واک او وس پورې د نوي ژبپوهنې په رڼاکې د یوې نوي
ښوونځیوالي (مکتبي) پښوونې او ژبښوونې بنسټ هومره کېږدم ·

زه د اباتې نه وهم چې دغه پښوونه په تیوریک ډول د کوم ډیر تازه او لوکس
ژبوهنیز ښوونځي (لکه ترانسفورماسیونل – ژنراتیف ګرامر) ښکارندوی ګڼلای شي او
سل په سلو کې د پښتو یو بشپړ سپړیز (تشریحي) ګرامر اوس خو دا په ډاډ ویلای شم
چې دودیز نورماتیف ګرامر هم نه دي · دا چې ایکي او علمي پښتو لامنځ ته نه ده راغلې
او هرچا خپله کلیواله او ځانګړي پښتو رامخکې کړېده نو کېدای شي ځینو ګوتیوونکو
ته زما دغه پښوونه یو نورماتیف ګرامر وایي چې ځکه ما د نورو پر خلاف ځانته یوا ځینې پښتو
امرلی او غوره کړې ده او د ګرامري د ودونو (قاعدو) او ټولیو (کټیګوریو) په سپړنه ایستنه
او ویشنه کې مې د ټولو پښتو ګړ د ودونو یوې ګډې امرلی (انتخابي) بڼې اراو معیار په
کار اچولی دي په دي چې د ((پښتو)) ګرامر لیکه او د ((پښتو ګانو)) ګرامر لیکه
سره توپیر لري ·

دموخې اومرام له پلوه مازيات دپښتو څانګې دشاګردانو راتلونکې اړتيا په پام
کې نيولې ده ۰ هغه داچې دوې په داسې يوي‌نوي پښوې سره پرځپل ځپل وار پـــه
منځنيو او لوړو ښوونيزو ځانګوکې سمدلاسه دزړې ژبښوونې پاي‌ته رسيدل اوله دود ه
لويدل هومره وښوولاي شې اوپرځاي يې دنوي ژبښوونې يوه وزمه هومره ځپره کړي داسې
نوي ژبښوونه چې هم تخنيکي اومتوديکې نوېوالې لري اوهم ژبنې نوېوالې ۰ او زماپه ازمينت
ندي لاسوند چې ماولې دغه دوه اړخيز نوېوالې ته پرېووار را ودانګل ، داديچې يوا ځې
په دې يوه نوېوالې له زړې ژبښوونې او پښوې سره مبارزه بياهم نيمګړي وه ۰ د ((حــرف
ياتوري ))ــ(( مصدر)) ــ (( فاعل )) او (( مفعول ))غونډې کرغيړنې نومونې چې استاديې
په ويلو او شاګردان ياشاګرداني يې په اوريدلو شرميزي نور هماغسې له دوبه او موده وتلې
بريښې لکه پخپله دزړې ژبښودنې کړغيړن دوداو تخنيک ۰

که څه هم د دې نوي‌غورځنګ دغه دويم اړخ راته داپنځه شپږ کاله دمرېه کامه
کې اوبه راکړې اودزړې لياري پلويانو مې دکوټلو لپاره همداپلمه ونيوله خوما هرڅه ديوه
((علمې بري)) په خاطر وزغمل او ټال مې پرڅمکه کېښې نښود ۰ همدغه زغم اړتينـــګ
هوډ اوويلاړو چې تر بري‌يې ورسولم او هغه داچې دغه نوي پښو به مې له ټولو نويو نومونو
اوترمونو سره هم شاګردانو وسهلاي شوه او زده کړاي شوه او هم مې دشاګردانو شاګردانو ۰
دادپيوهنځې دناپښتو څانګو او ځينو نورو پوهنځيو لپاره له همدغه ګرامر څخه لوستونـــه
برابر شول او همداسې يې پسې دهيواد نورو ډيرو ښوونيزو مرکزونو ته لارپيداکړه اولا
پيداکوي يې ۰ دملالې ليسې پښتو څانګې زما له همدغه ګرامر څخه يووتلې لوستليکې کاپې
کړ او دهغه ليسې په درسې کتابونوکې يې ورته ځاي ورکړ ۰ بې له دې چې زما لـــه
شاګردانو څخه کوم يوه هلته ښکارندوې کړي‌وي ۰ له دې ټولو خبرو سره سره زه بياهــــم
خپله پښويه يوه بشپړه اوبې (( خو )) نه بولم اونه يې بوللاي شم ۰ هماغسې چې زمـــا

دغه پښتوپه د پوهاند رښتین ترژبړودنی نوي ده او د هغی ځای یی ونیو همدغس به په

ځا پسی د دوکتور تزي هم زما تر دي نوي‌وي اوځاي به یی‌نیس ۰ مقصد یوه نوي‌داره

هومره می وایستله اوس‌نو هر نوي ژپوهاند او پښتو پوهاند کولاي شي بی له کوم

سرخوږ ه دنوي ژپوهنی دهماغه بیخی نوي ښوونځی په رڼا کی دلازیاتی نوي پښتو

ژپوهنی او پښتو پښتوی په باب تازه نوښتونه او نو چارونه وړاندي کړي ۰ نه یوا ځی

په ګړ هار پلکی په چار او کړ ن سره زما د دغوځاي ونیسی او په دي توګه د نوي‌نړ ۍ او

نوي پیړ ۍ له پوهی او تخنیک سره دپښتو اوپښتو په پیژندوي او روز دیدنه کی ترما

زیاته ونډ ه واخلی ۰

تل دي پرناپوهی باندي دپوهی بــري

اوبرزړ و باندي دنویو لا سبـــــري

پوهندوی دوکتور مجاور احمد زیار

نادرشاه مینه د ۱۳۵٦ دکب ۱۵

سید مسافر

## پښـــــويـــه (گـــــــــــرامر)

پښويه دژبپوهنې يوه ستره سپړيزه (تشريحي) برخه ده چې په دوديزه‌ول پـــه ښوونځيو او ژبنيو زده کړو ځيو (کورســو) کې دېوې ژبې يادهغې دمعياري ليکنې ښې دزده کړې داسانتيالپاره لوستل کيږي، ياپه لنډه‌ول:

پښويه دېوې ژبې له بيلا بيلو جوليزو توکونو او دودونو څخه غږيږي ياپه‌لنډه‌ډول ويلا پښويه دېوې ژبې دړغاونې (جوړښت) سپړنه (شرح) ده چې داسپړنه له درو اړخو څخه ترسره کيږي:

١ـ غږ پوهه (فونو لوژي)•

٢ـ ګړ پوهه (مور فو لوژي)

٣ـ غونډله پوهه (سينتکس)•

### لومـــــــړۍ برخـــــــه

### غږپوهه (PHONOLOGY)

غږپوهه په ټولـيز ډول دېوې ژبې لومړنې ساده توکونه (غږونه) کتې او څيړي او په لنډه ډول پردوو څانګو ويشل کيږي:

١ـ اوازپوهه (فونيميکس)•

٢ـ سپړپوهه (فونيتيکس)•

اوازپوهـــــــه: اوازپوهه دېوې ژبې ارزښتناک غږونه (اوازونه) ترڅيړنې لاندې نيسي•
اواز: (فونيم) هماغه داوريدو ور سپـړياغږ دی چې دغږيزو غړو او ساهوا په مرسته پرېووار له خولې راوځي پخپله کومه مانا نلري خو په وييونو (کلمو) کې مانيز توپير پيښوي لکه پوراو تور چې ديوه اواز په بدلولو سره دوه بيلا بيل وييـونه دي•

سپړپوهــــــــه: سپړپوهه دېوې ژبې ټول غږونه يا سپړونه که ارزښت ولري يا ونلري يومخيز ترڅيړنې لاندې نيسي دساري په ډول (د) دپښتو يو ارزښتناک غږ (اواز) دي خو په وينې

یاځپه کې له راز راز دریځ (موقعیت) سره بیلابیلی بڼې ځانته غوره کوي ۰ داسې چې وینګ (تلفظ) یې دوی یا ځینې په یوه برخه کې زور وروي اویه بله کې کمزوري یانیم کمزوري لکه په (ډوډ) کې چې لومړی (ډ) تر دویم هغه غښتلی ویل کیږي او دویم ۰ بیخي د (ت) وینګ ته نژدې کیږي ۰ نوډفونیتیکس له پلوه پرلومړي دویم او ۰۰۰ (دالونو) ویشو او د فونیمیکس له پلوه یې د هماغه یواځینۍ (دال) په توګه پیژنو ۰

په دې توګه هره ژبه یو ټاکلی شمیر اوازونه لري خو سپڼهونه یې هرڅومره کیـــــدای شي ۰

د پښتو اوازونـــــه : یوه ـ یواځینۍ ـ ګڼه لیکی معیاري پښتوټول ۳۶ اوازونه لري چې پرڅلورو ډلـــوویشل کیږي :

۱ـ خپلواك (واول) چې راپیدا کیدل یې بې له کوم سترهوایی بندیز ځخـــه ترسره کیږي او شمیریې اووته رسیږي ۰

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| زور | a | لکه | سر | sar |
| زورکی | ə | لکه | تره | trə |
| الف | ā | لکه | کار | kār |
| اوږده ي | e | لکه | ادي | ade |
| لنډه ي | ī | لکه | ښادي | ṣādī |
| اوږد و | o | لکه | اور | or |
| لنډ و | u | لکه | سور | sur |

۲ـ بیواك (کنسوننټ) چې له راپیداکیدو یاله خولې ځخه د راوتو پروخت د ساهوا له بندیز سره مخامخیږي اوشمیریې (۲۷) ته رسي ۰

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ب | (بې b) | لکه | بر | bar |
| پ | (پې p) | لکه | پور | por |
| ت | (تې t) | لکه | تور | tor |
| ټ | (ټې ṭ) | لکه | ټول | ṭol |
| ج | (جې j) | لکه | جوړ | joṛ |
| ځ | (ځې j̃) | لکه | ځوړ | j̃waṛ |
| څ | (څې c) | لکه | څار | car |
| چ | (چې č) | لکه | چار | čar |
| خ | (خې x) | لکه | خول | xol |
| د | (دې d) | لکه | دود | dod |
| ډ | (ډې ḍ) | لکه | ډاډ | ḍāḍ |
| ر | (رې r) | لکه | زور | zor |
| ړ | (ړې ṛ) | لکه | ړوند | ṛund |
| ز | (زې z) | لکه | زر | zər |
| ژ | (ژې ž) | لکه | ژر | žər |
| ږ | (ږې ẓ) | لکه | ږیره | ẓira |
| س | (سې s) | لکه | سم | sam |
| ش | (شې š) | لکه | شل | šəl |
| ښ | (ښې ṣ) | لکه | ښل (زینه) | ṣəl |
| غ | (غې ǧ) | لکه | غرمه | ǧarma |
| ک | (کې k) | لکه | کر (کشت) | kar |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ګ | (ګې g ) | لکه | ګر (ظلم) | gar |
| ل | (لې l ) | لکه | لار | lār |
| م | (مې m ) | لکه | موړ | moṛ |
| ن | (نــې n ) | لکه | نن | nən |
| ڼ | (ڼــې ṇ ) | لکه | بڼ | baṇ |
| هـ | (هې h ) | لکه | هلک | halək |

۳ــ نیمواک (نیم واول) هغه اوازونه دي چې دخپلواکو او بیواکو دواړو دنده پرځاي کوي یاپه بله وینا که په یوه څپه کی دزږي یاهستی (حرکت) کاروکړي د خپلواک بڼــه غوره کوي که نه دبیواک. په ترتیب سره لکه په بیل bel اوبیا byā کــس. دنورو خپلوانو ژبو غوندي پښتو هم دوه نیمواکلري:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| و | ( w ) | لکه | ور | war |
| ي | ( y ) | لکه | یور | yor |

٤ــ غبرګغږونه (دیفتونګونه) هغه اوازونه دي چې دخپلواکو اونیمواکو په ملګرتیا منځ ته راځي اولکه پوستوي آوازونه یووار پټــلیز (پیوسته) له خولې راوځي. دیوه غبرګغږ لومړي ټوټ یو خپلواک او دویم ټوټ یې یو نیمواک اوازوي اوداچې پښتو نیمواک اوازونه دوه دي نویه دې توګه یې یو ډول غبرګغونه په و( w ) جوړیږي اویل ډول یې په ي( y ) چې ټول شمیر یې یوولسوته رسي.

لومړي ــ دی( y ) غبرګغږونه:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نرمه یازورواله ي | ay | لکه | سړی | saṛay |
| اي | y | لکه | ځاي | zāy |
| درنه یازورکی والی ئ | y | لکه | مړئ | maṛəy |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ړي | oy | لکه | زوي | zoy |
| وي | uy | لکه | بوي | buy |

دويم ــ د و ( w ) غبرگږونه :

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| او | aw | لکه | لو | law |
| أو | w | لکه | کټــو | kaṭə w |
| او | üw | لکه | پړاو | paṛüw |
| او | ow | لکه | اوری | owrə y |
| یو | ew | لکه | ايو (گاه گل) | lew |
| یو | iw | لکه | تړو | triw |

څپــــه : څپه ، هجا یا سیلابهغه اوازغونډ ( فونیمي گروپ ) دي چې یا یو خپلواک وي اویاله یوه خپلواك اویوه یاڅو بېواکو څخه جوړوي اویه یو ځایـې ووېل له خولې راووځـي، لکه په ( ادوم ) کې چـې دوه زړي ( خپلواکه ) لري لومړی څپه ( ألف ) اودويمه ( دوم ) ده یاښخوند sxwand چې یوزړي ( a ) لري اوپنځه بېواکه نو یوه او زده څپه گڼل کيږي ۰ څپه هرومرو مانا نلري د ساري په توگه کور هم یوه څپه ده او هم یو ویـې ځکه مانا لريمگر ( اـغی ـ زه ) په اغیزه کې دریواړه څپې ځانته جلا جلا مانا وي نلري ۰

خج یافشار ( اکسینت ) : خج هغه چار ( عملیې ) ته وایي چې د ژبنیــــــز توکونو په لړ کې یو ترك په زور او شدت سره وویل شي ۰

په دي توگه خج په درو ډولو وېشل کیږي :

غونډله ییــز ( جملوي ) خج ــ وییز ( لغوي ) خج او څپییز ( هجا یــــي ) خج لکه په ( زه پوهنتون ته ځم zə pohantuṇ ta jə m. ) کې یوغونـــډ له ییز خج راغلی او هغه هم پر ( u ) اوپه یوه وخت کې وییز خج هم دي ځکه د

غونډلی دنوروويینو په ترڅ کی يوائحی د (پوهنتون) وس خج اخیستی او هم څپیزخج دي

ځکه دپوهنتون د دري گونو څپو په ترڅ کی يوائحی يوي څپی

خج تر لاسه کړي دي ٠

## دويمــــــــه برخــــــــه

## گړ پوهه (صرف Morphology )

گړ پوهه دپښتو هغه برخه ده چی دگړونو (مورفیمونو ) له رغاونی اوړون (گردان)

او دهغو له ځیلونو ( ټولونو ) سره کار لري ٠

گـــــــــړ : گړ هغه کوچنی دانیز ژبنی توك يا مانيز يوون (واحد ) دي چی که وشنل شی

اوازونه تري لاسته راځی اوپه دې توگه خپله مانا له لاسه ورکوي ٠

ځانگــــــــی : گړ پوهه دگړونو د ټولونو له مخــــی په دوو ځانگو وشل کیږي : يوه

داوړيد ونیو (گردانید ونکو ) گړونو ځانگه اوبله دنااوړيد ونیو گړونو ځانگه ٠ داوړيد ونیوگړونو ځانگه بیا دوي برخی را اخلـــــی :

١ــ نوم گړپوهــــه ٠
٢ــ کړگړ پوهه ٠

نوم گړ پوهه :

په نوم گړ پوهه کی د نومونو ټولونه اودهغه اوړونونه(گردانونه) څیړل کیږي ٠

نـــــوم : هغه ويی دي چی بی له زمانی اړيکی (دکړپه توپیر ) د راز راز څیزونو

او ښکارند و(پدیدو ) څرگندونه کوي لکه تیزه ، لرگی ، سړي ، سړيتوب ، ښايست، روغ ، روغتيا ،

روغوالی ، زه ، ته ، دي ، يو ، دوه ٠٠٠٠٠

دنومونو ټولونــــــــــه :

نومونه پرڅلورو ټولو (گروپونو) وشل کیږي :

١ــ څیزنومونه ( اسماء ) ٠

۲ـ ستاینو مونه (صفات) ۰

۳ـ شمیرنومونه (اعداد) ۰

٤ـ نومځیري (ضمایر) ۰

دنوم اوړون اړخونه :

نومونه په ټولیز ډول د درو اړخو (وجوهو) له مخې اوړون مومي لکه نوزي ، گڼه ، پیر ، خو ځلورم ډول (نومځـري) یې پرهغو سربیره د یوه بل اړخ (وگړي) له مخې هم گردانیږي ۰

۱ـ نوزي (جنس) چې نوم نرینه دي لکه گیدړ ، سور او یا ښځینه لکه گیدړه ـ سره ۰

دنومونه نوم نښې : داوروسته نومونه زیاتره نرینه دي :

۱ـ چې وروستي اواز (فونیم) یې بیواك (کنسوننت) وي لکه : کور ، ختیځ ، هلك ، غـــټ ، زیاړ ، هیواد ، غورځنگ ، اورمیز ، لاس ، پټ ، چرگ ، بیدوده (مستثنی) زیاتره دخپلواکو نومونه لکه : خور ، مور ، ترور ، نزور ، ندرور ، ورندار ، تندار ۰ یاهغه ښځینه نومونه چې په رینگ کې زیاتره خپل پای خپلواك غورځوي لکه ښتن ، ځنگل ، لار ، ترخځ ۰ همداراز نوزي (مؤنث) اومت (متهي) ۰

۲ـ له زورکي والي ی ( ی ) او ۸ پرته هرنوم چې په غبرگغږ (دیفتونگ) پای ته رسیدلی وي لکه سړي ـ لرگی ـ ځای ـ بډای ـ زوي ـ لوي ـ شارندوي ـ پیژندوي (مشهور) بوي ـ خوي ـ کډو ـ لو ـ جړاو ـ پړاو ـ کړاو ـ نیاو ـ لیو ـ تیو ۰

۳ـ هغه نومونه چې په زورکي پای کیږي لکه تره ـ پسه ـ لیوه ـ رواره ـ زړه ۰ بیدوده لکه : خوله ، وباله ـ تراه ۰

٤ـ هغه نومونه چې په لنډو ( u ) پای ته رسي لکه چاکو ، تټو ، یابو اردو (عسکري) ، لاټو ، لاهو ، کاهو ، ماکو ، پټو ، پیښاوو (مقلد) ، ساندو (باجه) ، ساهو (ازاد) ، بازو ۰

دښځینه نوم نښې : داوروسته نومونه زیاتره ښځینه نښې (پایلی) لري :

۱ـ له زورکي اولنډو (و) پرته هغه نومونه چې په خپلواکو (واولو) پای ته رسي لکه ادې ، زاوې ، خوزه ولې ، ښادي ، رروري ، ودانې ، ورانې ، ښه ، پزه ، ښځه ۰

رڼا ، برېښنا ، پېدیا ، لوړ تیا ، نخا ، ځلا ، ورا ، بلا ، ژړا ، خندا ، غلا ، ملا (کمر) ، شا ، ویسا ، پښتیانا ، اریانا ، پیشو ، زانګو ، درخو ، بیو ، پیلبو (برېښنا) ، شادو ، بیزو ...

بېلګه لکه: دادا (پلار) ، ماما ، کاکا ، لالا ، بیړا ، بډا (مقابل) ، بومیا (پیشرا) ، هوسا ، جلیا ، ملیا (باغوان) ، کونا ، رونډا ، سبا ، میلمه ، کوربه ، غوبه ، لربه ...

٢ـ د ـه په غبرګغږ پای کېدونکي نومونه ، لکه: کټو (کټوه) .

٣ـ په زورکي والی ی (غبرګغږ) پای کېدونکي نومونه ، لکه: ډوډی ، هوس ، کبلی (غزال) ، شړی ، مړی ، اړی (کور دخورد) ، ډی (کلك دندده) ، متهی ، ګدی (فاحشه) ، اریکه مسند ، قنجوغه) ، نجلی ، مخه (بدلګړي نجلی ، معما ، چیستان) ، نتکی ، شپیلی ......

دګڼــــــي (عدد) نښــــــې:

الف ـ د نرینه ګڼــي (جمع) نښې په داوروسته ډول دي:

١ـ ان . زیاتره هغه نرینه نومونه ډېرګړي (جمع) کوي چې بیواکپای اوسااواوي . لکه هلکان ، پړانګان ، مچان ، کبان ، چنګابنان .

ځینې خپلواکپای نرینه نومونه لکه لیوان ، تېتوان ، اسان (اسونه) ، پسان (پسونه) ....

٢ـ ونه ، زیاتره بیواکپای بې سا نرینه نومونه ډېرګړي کوي ، لکه سیندونه ، ډنډونه ، میزونه ، کتابونه ، لاسونه ، نسونه ، سرونه ، پلونه ، خوبونه ، بوبونه ، توبونه ، وربېونه .

ځینې خپلواکپای نرینه نومونه لکه ترونه ، وربرونه ، زړونه ، ځینې ساواالا بیواکپای نرینه نومونه لکه پلرونه .

٣ـ زورکي ، ځینې لنډ خپیز اوخپلواك (وای) منځي نرینه نومونه ډېرګړي کوي ، لکه: خره ، غله ، دښنه ، مله ، مړه ، وازره ، پښتانه ، شپانه ، خوازه ، تراخه (ترخه) ، زره (ززه) ، ماغزه .

٤ـ لنډه ي ( ي ) ، هغه نومونه ډېرګړي کوي چې په نرمه ی ay پای وي . لکه نرګي ، سړي ، ځلمي ، نښتي ، غوبي ، وبي ، توکي ، پیاوړي ، روي ، ګوي (غابنې) ، غابني .

د دي روستاړي پلګړ ان اوونه هم لز و ډيرراځي لکه ځلميان غوبان ويېرونه خوريــــونـــــه ۰

۵ــ يا ن چې د ان بلګړ دي او ځينې غبرګغږ پاي‌او خپلواکپاي نرينه نومونه ډيرګړي کوي‌لکه ميرزايان، اشنايان ، سويان ۰۰۰۰

۶ــ ګا ن چې دا ن يو بل بلګــړ دي اوځينې خپلــواکپاي نرينه نومونه ډيرګړي کوي لکه سنړه اګان ، لانړګان ، کدوګان ، تېتوګان ، ماماګان ، کاکاګان، لالاګان ، ببړ اګا ن ، پړاګان ( پړا ) ، پوړاګان ۰

بيدوده لکه ميلمانه ، زامن ۰

ب ــ د ښځينه ګڼـې (جمع )نښې په‌ډې لاندي ډول دي :

۱ــ اوزده ( ې ) ، هغه ښځينه نومونه جمع‌کوي‌چې په زوريا زورکي پاي ته رسي ۰ لکه : منـې ، پزې ، خټولې ، وبالې ، وړانګې ،خانګې ، سانګې (نيزې ) ، پانګې ، ډيوې ، شړنډې ، سکروټـې ، پلې (پې) ، توکې تکالې ، غلې ، ملې ، خرې ۰۰۰۰

۲ــ زورکي واله ئ y ے ، هغه ښځينه نومونه ډيرګړي کوي‌چې په لنډه ي پاي ته رسيدلې وي ، لکه ودانئ ، خپلوئ ، ښادئ ، نارونئ ۰۰۰۰۰

۳ــ وې wo هغه ښځينه نومونه ډيرګړي کوي‌چې‌په الف يا اوزده( و ) پاي ته رسي ، لکه ژړاوې ، خنداوې ، ملاوې ، نڅاوې ، زانګووې ، پيلبوې ، ښکالووې ، پيــــرزووې ۰

باګړين ګانې هم راځي لکه شاګانې ، نڅاګانې ، بريښناګانې ، زانګوګانې ، بېزوګانې ، همداراز ورندارګانې ، ننداروګانې ۰۰۰۰

۴ــ آنې ، زياتره هغه ښځينه نومونه ډيرګړي کوي‌چې پاي ته‌يې لنډه ي راغلې وي لکه بيديانې ، شاديانې ۰ او ديوي بلې نښې (يندي) دبلګړپه توګه ، لکه : ډوډيانې ، مزدورانې ، ترورانې ( ترېندي )، مورانې (ميندي) ۰۰۰۰

ه‍ ـ یندي ، هماغه بیواکیایه خپلوان نومونه ېږګړي کوي چې ورسره لنډون موسی لکه میندي ، خوېندي ، نږېندي ، تربندي ٠

٦ ـ صفر دامانا چې په زورکی واله ئ باندي پای نومونه ېي له کومی نښی د ېږګړي په توګه هم راځي ٠ لکه : کړ کړ ، چلی ، ډوډۍ ، خپلی ، ټټرۍ (واسکټ) ، بلګرېس (یانی) هم یو څه دودلري ٠ لکه : کړکیانی ، چلیانی ، کوچیانی ، موچیانی ، کبلیانی ، کچنیانی ، چینکیانی ، تروړیانی (ترورۍ) ٠

ېي د وده (مستثنی) ٠ لکه : نجونی او نجونه ، لونې ٠

۳ ـ پېر (حالت) ٠ چې نوم په خپل چاپیریال (غونډ یاغونډ له) کې څه حالت لري ٠ لکه ( پلوشه راغله ، پلوشي ډوډۍ وخوړه ، دپلوشی وروړ ناروغ دي ، له یوه لاسه ټک نه خیژي ) دلته ګوروچې (پلوشه ، یو اولاس) څنګه خپل حالتونه او بڼې بدلوي ٠

په پښتو کې دیوه نوم پیږد کړوال څار (فعلی عملی ) اوویکو ( اداتو ) له مخې څرګندیږي اود پیرنښی یې هماغه پایلې یا روستاړي دي چې په پای پوري یې نښلي ٠ نومپیرونه په داوروسته ډولودي :

۱ ـ کړندپیر (فاعلی حالت ) لکه ځلمي ډوډۍ وخوړه ٠ ځلمی راغی ٠ ځلمی ډوډۍ خوري ٠ په دریواړو غونډ لوکی ځلمی کړند پیر لري یا په بله وینا په دریواړو ځایو کې ځلمی کړند (فاعل ) دي :

۲ ـ لنډ کړی پیر ( بی واسطه مفعولی حالت ) لکه : بارک اوبه وڅښلی ٠ بارک پلوشی ته لیکی ( کتاب ) ورکړ ٠ خوازک پلوشه ووهله ٠ په دي غونډ لو کی (اوبه ، پلوشی اوپلوشه) لنډ کړی ( بی واسطه مغعولونه) دي یاپه بله وینا لنډکړي پیرلري ٠

۳ ـ لرکړي پیر( بالواسطه مفعولی حالت) ٠ لکه : ببرک زمرک ته لیکانی ورکړ سنګ اشرک ته خبره وکړه ٠ غرزي ماته روسې ژبه رازده کوي ٠ په دي غونډ لو کی زمرک

اخك او (ما) نركړي دي يا په بله وينا دغه دريواړه نومونه لركړي پيرلري او په هغه غږونه اسو كي (ليكاني ، خبره او رومن زمه) لنډه كړي بلل كيږي ۰ يا په بله وينا دغه دريواړه نومونه لنډه كړي دي ۰

۴ــ لوښتن پير (الى حالت) ، داماناچي ديوه لوښين يا الى په وسيله يو كار ترسره شوي وي لكه ؛ توريالي په بياتي ژرېل شو ــ بريالي په ليكاني يو ليك وكيښ ــ ګلخانګه په كاشوغه ډوډۍ خوري ۰ په دغو درو بيلګو كي (بياتي ، ليكاني او كاشوغه) لوښتن يا الى نومونه دي او په دي توګه لوښتن پير لري ۰

۵ــ تولپير (اضافي حالت) ، هغه نوم چي يو شه ورپوري اړه لري ، تولنوم (مضاف اليه) ګڼل كيږي او تول پير (اضافي حالت) لري ۰ لكه ؛ دويالى اوبه ښي دي ۰ د ځمكي كور ښكلى دي ۰ دا اسمان ستوري په وريځ كي پټيږي ۰ (ويالى ۰ ځمكي او اسمان) تولنومونه دي يا په بله وينا دغه درې نومونه تولپير غوره كړي دي ۰

۶ــ رتون پير (انتهايي يا مفعول منه حالت) ۰ دامانا چي يونوم ديوه كار پيليځ (منشا ) ګرځيدلى وي ۰ لكه ؛ له كندهاره راغلم ــ له ښوونه زده کیږي ــ له بدو وابنه زېږي ۰ دلته (كندهاره ۰ ښو او بدو) رتون پيرلري ۰

۷ــ تون پير (ځايني يامكاني اوزماني حالت) همدارنګه مفعول اليه يا استقامتي او معيتي حالت) ، هغه مهال نوم يا ځاينوم چي ديوه كار ظرف ګرځيدلى وي او يا ورته يو كار متوجه شوي وي ۰ تونوم بلل كيږي او په دي توګه تون پيرلري ۰ لكه ؛ په كور كي څوك نشته ــ په شپه كي خلك ويده كيږي ــ زه دوريځي كاركوم ۰ دلته (كور ، شپه او وريځ) تونپير يا ظرفي حالت غوره كړي دي ۰

۸ــ بلن پير (ندائيه حالت) ، كه يوه نوم ته بلنه يا غږ شوي وي ۰ بلننوم (منادا) بلل كيږي او حالت ته يي بلنپير وايي ۰ لكه ؛ يه هلكه ! يه خلكو ! واځلميه ! ... ۰ (هلكه ۰ خلكو او ځلميه) بلن پيرلري ۰

یادښت : که یوه نوم په کوم پورتنی پیرکی خپلی بڼی ته بدلون ورکړي وي · او ښتی نوم بدل کیږي یاپه بله وینا هغه نوم اوښتی پیر (مغییره حالت) لري او که اوښتې یی نه وي موندلی نو ارنوم ورته وایی او حالت یی ارپیر (اصلی حالت) بلل کیږي ·

دنوم پیر (اسمی حالت) نښی (پایلی) ، زیاتره له ګڼی (جمع) هغو سره سمون لري · لکه ځلمی ـ دځلمی ـ پلوشه ـ دپلوشی ، شپون ـ دشپانه ، غل ـ غله ··· پرته له (ان اووې او د هغو له بلګرونو (لیوان ، سیندونه ، بیبیانی ، شادیانی ، ژړاوې) او د بیواکپایو ښځینه نومونو (میندي) ·

ډیرکړي (جمع) نومونه بیا په یو مخیز ډول خپل اوښتی پیر په (و) ښیی · لکه : د ښځو ـ سړیو ـ هلکانو ـ خویندو ـ بریښناګانو ····

په دي توګه په ان ، وې ، ونه ، انی ، یندي او د دوي په نورو بلګرونو (الومورفونو) جمع کیدونکی نرینه او ښځینه نومونه له (بلن پیر) پرته نوره او ښتنه نلري · البته په بلن پیرکی بیواکپاي نومونه خپل پاي په زورونو (فتحو) روستاري کوي · لکه په هلکه ! په موري ! په پښتنو ! داوښتونکو نومونو فورمول په دي ډول دي :

زه ، ته (دحال مفعولیت پرته) ، دي ، دا ، هغه ، څوك ، سړي ، ښځه ، پښتون ····

* وییکی (ادوات) یادلیزند تیرمهال کړند والی (متعدي ماضی فاعلیت) = ما ، تا ، ده ، دي ، هغه (په زورکی) ، هغی ، چا ، سړي ، ښځی ، پښتانه ·····

نا اوښتونی (تغییر نه موندونکی) نومونه : ځینی داسی نومونه شته چی په یوګړي بڼه په اتو واړو پیرونوکی کوم جولیز اوښتون (تغییر) نه مومی او هغه دادي :

۱ ـ الف پاینومونه : لکه کاکا ، ملا ، دادا ، پښتیانا ، اریانا ، پکتیا ، سبا ، یما ، کیشکا ، لوړتیا ····

روغتیا ، هیله ، ننگ ، پت ، میړانه ، پیاوړیتوب ، رخه (کینه) ، خوښي ، خوز (درد) ، ویر ، زغم ، اندیښنه ، لوبې ، درناوي ، سپکاوي ، ښیګڼه ، بدي ....

٣ـ ځانګړنوم (خاص اسم): چې یو ځانګړي شیز ، پدیدې ، وګړي یا ځاي نوموي ، لکه پښتو ژبه ، پښتو نواله ، خوازك ، زرمینه ، ننګرهار ، کندهار ، پکتیا ، هند ، ایران ......

٤ـ ټولنوم (عام اسم) ، داسې شیز یا ښکارنده نوموي چې ځانګړي او خاص نه وي بلکه ټولونه او ځیلونه ولري ، لکه ونه ، هلك ، نجلی ، هیواد ، څاروي ، وګړي ، اولس ، تړون ، ژمنه ....   ...

٥ـ نوز نوم (جنس اسم): چې په یوه شمیرید ونکی شیز (جنس) اړه لري ، لکه: زر ـ اوبه ـ اوسپنه ـ اور ...

٦ـ غونډنوم (جمع اسم) : چې یوه ډله او غونډ نوموي ، لکه : ټولی ، ټولګی ، ګوند ، ټبر ، ګورم (پاده) ، رمه ......

٦ـ انګینوم (صوت اسم): چې د طبیعی یا مصنوعی اوازونو انګی یا انګازه (پژواك) نوموي ، لکه : درز ، دروز ، درزې ، درزا ، درزهار ، ګرب ، ګړوب ، ګړبې ، ګړبا ، ګړبهار ، ترپ ، تروپ .....

دویم ـ ستاینوم :

ستاینوم (صفت) چې په خپلواك ډول څه نه نوموي بلکې د یو څه څرنګوالی نوموي یا په بله وینا یو ستاینوم په یوه شیز نوم اړه لري او د هغه څرنګوالی ښیې ، لکه تود ، سوړ ، غټ ، ووړ ، تور ، سور ، ښکلی ، ښایسته ، غښتلی ، کمزوري ، روغ ، ناروغ ....

په پښتو کی ستاینوم د لوړتیاد پوړونو یا د لزوالی ، ډیروالی ، سستوالی او تونډوالی بیلابیلی ښکاره د ریګونی درجی نلري لکه په دري ژبه کی په ـ بهتر ـ بهترین یا بزرګ ، بزرګتر ، بزرګترین

له دې کبله یو پښتو ستاینوم د ورییکو ( اداتو ) په ملتیا خپل پوړونه یا درجـــې او طبقې ښکاره کوي لکه ښه ــ ډیر ښه ــ لاډیرښه یا سپین ــ ډیر سپین ــ خوراسپیـــن ــ ترټولو سپین ــ زښت زیات سپین اودا سې نور ٠

د ستاینوم ډولونه :

ستاینوم په دوه ډوله دي ، لنډ او لــر ٠

لنډ ستاینوم ، هغه دي چې ترشیز نــوم دمخه اوورسره جوخت راځي اولنډ په لنډه یې ستایي ، لکه توره دړه ، روغ سړي ، ښکلې نجلۍ ٠٠٠٠

لرستاینوم ، هغه دي چې ترشیزنوم وروسته راځي او له کړوالي برخې(مسند ) سره پیوستون لري ٠ که څه هم هماغه شیز نــوم ستایي ٠ لکه : دړه توره ده ــ سړي روغ دي ــ نجلۍ ښکلې ده ٠٠٠٠٠٠

لرستاینوم زیاتره دکړول ( قید ) په توګه هم کارول کیږي لکه : هلک ژر راغـــې ــ اسمان په ستورو ( ښه ) ښکاري ــ پلوشه ( ښکلې ) پریښي ــ زه کورته (ډیر)ځم ٠٠٠٠٠

دستاینوم اونستایلي ( صفت او موصوف )ګرد انې سمون :

په پښتو کې ستاینوم ( لنډ یالر ) اوستایلي یا هغه شیز نوم چې ستایل کیږي ٠ دنوم اوړ ون د د روګونو اړخو( نوزي ــ ګڼـې ــ پیر ) له پلوه سره زیاتره سمون لري لکه : ړوندغل ــ ړنده غله ــ ړانده غله ــ ړندې غلې ــ دړاندہ غله ــ دړندې غلې ــ دړندو غلو ٠٠٠٠٠٠

یا په نابشپړ ډول اویا ابزیزلیزه دیوه یا دوواړخوله پلوه ، لکه : لوي غل ــ لويه غله ــ لوي غله ــ لوې غلې ــ د لوي غله ــ د لوې غلې یا سپین غل ــ سپینه غله ــ سپین غله ــ سپینې غلې ــ د سپین غله د سپینې غلې ــ د سپینو غلو ٠٠٠٠

په دې توګه ځینې ستاینومونه له خپلو اړوندو ( مربوطو ) شیز نوونو ( ستایلیو ) سره بشپړ اوړون موي او ځینې نیمګړي ٠ لکه پـه دې لښتیلیک ( جدول ) کې :

| | |
|---|---|
| شین ختکــــــې | – شنه ختکـــــــې |
| د شنه ختکـــــې | – د شنو ختکیـــــو |
| شنه هندوانــــه | – شنې هندوانـــې |
| د شنې هندوانـــې | – د شنو هندوانــــو |

د ریم – شمیرنوم ( عدد د اسم ) :

شمیرنوم هم د ستاینوم غوندې په خپلوا ك ډول کومه نومونه نه کوي بلکې په یوه څیز نوم اړه لري ۰ خــــو د ستاینوم غوندې یې ځرنګوالی نه چې څومره والی او پوړ والی (تدرج) ښیې ۰ لکه یو– دوه – درې ۰۰۰۰ یا لومړي– دویم – دریم ۰۰۰۰

د شمیرنوم او شمیرلی ( عدد او معدود ) ګردانې سمون :

په پښتو کې شمیرنوم لکه لنډ ستاینوم ترخپل اړوند څیز نوم ( شمیرلی ) د مخه راځې او ډیر لز ورسره اوړون مومي ۰ هغه دا چې لومړي دوه (یو) او (دوه) ورسره دنوزي او پیرله مخې ګردانیزي او نور پورته ورسره یواځې دپیرله مخې ، لکه په دې لښتیلیك کې :

| | |
|---|---|
| یوغل | یوه غله |
| دیوه غله | دیوې غلې |
| د وه غله | د وې غلې |
| د د وو غلو | د د وو غلو |
| د رې غله | د رېغلې |
| د د رو غلو | د د رو غلو |
| څلورغله | څلورغلې |
| د څلورو غلو | د څلورو غلو |
| ۰۰۰۰۰۰ | ۰۰۰۰۰۰۰ |

د شمیرنوم ډولونـــــــه :

شمیر نوم د اوروسته ډولونه لري :

۱ــ آر شمیر (اصلي عدد) لکه یو ــ دوه ــ دري ــ څلور .....

۲ــ پوړ شمیر (وصفي یا رتبي عدد) چي د خپل شمیرلي پوړ اورتبه ښیي لکـه :

لومړي ــ دویم ــ دریم ــ څلورم .....

۳ــ وور شیمر (کسري عدد)، چي دا رونده څیزنوم (شمیرلي) ماتوالي اوبرخه والي

ښیي لکه دویمه ــ دریمه ــ څلورمه ......

لسی (دهه)، سلی (سده) زری (هزاره) یوډول گروپي شمیر نومونه دي .

۴ــ ویش شمیر (انقسامي عدد) چي دا رونده څیز نومونو ویشنه او جوړه جوړه

کونه څرگندوي اوبه دي توگه د وور شمیر غوندي له ډیرگړیو (جمع) څیز نومونو سره اړه لري نه

له یوه سره؛ لکه : یو یو ــ دوه دوه ــ دري دري ــ څلور څلور ........

۱ــ اټکل شمیر (تخمیني عدد) چي دیوه څیز نوم (معدود) پرځاي غبرگ غبرگ څیزنومونه

ښیي . اوبوهم نه ټاکي لکه : یو دوه ــ یو دري ــ دوه دري ــ دري څلور ــ یولس ــ لس شل ــ

شل دیرش ــ پنځوس شپیته ..... په دي توگه اړونده څیز نومونه د دواړو شمیر نومونو

تر منځ اټکلیداي اړ ومیرداي (انتخابیداي) شي . یا لومړي یا دویم اویا دهغو تر منځ .

دغه جوړه جوړه شمیر نومونه زیاتره پرله پسي وي لکه یو دوه ــ دوه دري اویا په یوه ټاکلي

اوعام منلي واټن سره لکه اته ــ لس یا لس شل مگر ښایي هیڅ یوپښتون دوه څلور ــ دري

پنځه ــ څلور شپږ .... ونه وایي . البته (یو) له هرپورته شمیر سره جوړه کیداي شي

خو هغه هم زیاتره دپیژند (حرف تعریف) په توگه چي اټکل ورسره په خرمه (ضمني) ډول

هم څرگندیږي .

## څلورم ــ نومځري (ضمير)

نومځري هغه وي دي چي ديوه نوم نښكارندوي كوي ، دهغه پرځاي راځي اويا يې ملګرتيا كوي . او دهمدغې دندې له مخې دنومونو په ډله كې ځاي نيسي . له نورو نومونو (څيز نوم ــ ستاينوم او شميرنوم) سره دنومځري توپير دادي چي دا پرډروګونو اړخو (نوزي ــ ګڼې اوپير) سربيره دوګړي (لومړي ــ دويم او دريم) له مخې هم اوړون مومي . (وينفريد اولريښ دژبپوهنې قاموس ۲٤۲) .

دنومځرو ډولونه : نومځري دجولې او چاړله مخې پردې وروستيو ډلواوولو ويشـــل كيږي .

۱ــ ځانګړنومځري (شخصي ضميرونه) . چي دوه ډوله دي : غښتلي ــ كمزوري ؛

الف ــ غښتلي (منفصل) :

<table>
<tr><th>ګڼه / وګړي</th><th colspan="3">يوګړي (مفرد)</th><th>ډيرګړي (جمع)</th></tr>
<tr><td rowspan="2">۱</td><td colspan="2">اريـــر</td><td>اوښتي پيـــر</td><td rowspan="2">مـــوږ</td></tr>
<tr><td colspan="2">زه</td><td>مـــا</td></tr>
<tr><td>۲</td><td colspan="2">تـــه</td><td>تـــا</td><td>تاســـې</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۳</td><td>نرينه</td><td>دي هغه</td><td>ده هغـــه</td><td rowspan="2">دوي هغـــوي</td></tr>
<tr><td>ښځينه</td><td>دا هغه</td><td>دې هغې</td></tr>
</table>

ب ــ كمزوري (متصل) :

| ګڼه / وګړي | يوګړي | ډيرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | مې | مو |
| ۲ | دې | مو |
| ۳ | يـې | يـې |

۲ــ تولنو مخري (ملکي یا اضافي ضمیرونه) • چې تول (ملکیت) اوار وندي (متعلقیت) ښیي • دغه نومخري هم پرغښلیو او کمزوریوویشل کیږي ؛

**الف ــ غښتلي (منفصل):**

| گڼه / وګړي | یوګـــړي | | ډیرګـــړي |
|---|---|---|---|
| ۱ | زمـــا | | زمـــوز |
| ۲ | ستـــا | | ستاســـ |
| ۳ | نرینه | دده | ددوي |
| | ښځینه | ددې | |

کمزوري تولنومخري کټ مټ دځانګړیو کمزورو هغو غوندې دي لکه :

| گڼه / وګړي | یوګـــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | مې | مو |
| ۲ | دې | مو |
| ۳ | یــې | یې |

۳ــ نغو تنومخري (اشاري ضمیرونه) : هغه تومخري چې وګړ و یا څیزونو تــه نغوته (اشاره) کوي او د هغو د نومونو ځاي نیسي او یا ورسره لکه ستاینوم ملګرتیا کوي نغوتومخري دنوزي ــ گڼې ــ پیر ــ او یواځې د دریم وګړي اوواټــن (فاصلې) له مخې اوږ ونلري ؛

| گڼه / وګړي | | یوګـــړي | | ډیرګـــړي | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | ارپیـــر | اوښتي پیر | ارپیـــر | اوښتي پیـــر |
| ۱ | لنډ | دغه | دغه ه | دغه | دغـــو |
| | | دغه | دغې | | |
| | لر | هغه | هغه ه | هـغـه | هغو |
| | | هغه | هغې | | |
| | لالر | هوغه | هوغه ه | هوغـــه | هوغـــو |
| | | هوغه | هوغې | | |

٤ـ پوښتنو مخري (استفهامي ضميرونه): چې د يوې پوښتنې لپاره په کار لويږي او د وګړي ــ څيز ــ مهال ــ تون ــ څرنګوالي او څومره‌والي له مخې ډول ډول دي.

اوړون يې زياتره يواځې د پيرله پلوه لږ و ډيرترسره کيږي:

ــ څوك (چا)، چې د وګړي يا وګړو لپاره راځي چې څه يې کړي ياپې کوي ياپري څه شوي يا کيږي. اوزياتره دپوښتنې غونډلو (جملو) په سرکې راځي.

څوك راغی ـ راغله يا راغلل؟. څوك ځي؟ ـ چا وويل؟ ـ څوك وايي؟ ـ څوك يې وواهه؟ـ ووهله ياووهل؟ ـ څوك ووهل شو؟ـ ووهل شوه؟ـ ووهل شول يا ووهل شوي؟ ــ څوك وهل کيږي؟

څوك داړيك اوناټـك نومخري په توګه هم کارول کيږي او همدارنګه دپيژند (حرف تعريف) کار هم ورکوي لکه څوك مې وليد ــ نن يو څوك راځي.

ــ کوم: د وګړي يا وګړو ــ څيز يا څيزونو لپاره راځي چې د نورو پوښتنو مخرو پرخلاف پرپيرسربيره دنوزي له پلوه هم اوړون لري. لکه په دې وروستيوغونډلوکې:

کوم سړي راغی؟ کوم سړي وويل؟ دکوم سړي رنګ زيړ وي؟ کومه ښځه راغلې؟ کومې ښځـې وويل؟ دکومې ښځې رنګ زيړ وي؟ کومو ښځـو ــ سړيو وويل؟ دکومو ښځو ــ سړيو رنګونه ژيړ وي؟

ــ کله: چې مهال پوښتي او هيڅ اوړون نلري، لکه کله به راشې؟

ــ چيرې: چې تون (ځاي) پوښتي او هيڅ اوړون نلري: لکه چيرې ځــې؟

ــ څنګــه: چې ديوه وګړي يا څيزيا يوه چارڅرنګوالي پوښتي، لکه څنګه‌راغی؟ څنګه راغله؟ څنګه کار دې وکړ؟ څنګه نجلۍ دې وليده؟ څنګه ليکې دې وييره؟

ــ څـــــه: چې زياتره ديوه څيز يا وګړي پيژندنه پوښتي اوزياتره په ډيرګړي اونوز نوم (جنس اسم) پورې اړه لري؛ بې له دې چې خپله بڼه واړوي، لکه: داڅه دي؟ داڅه دي؟ څه دې وکړل؟ څه دې راوړل؟ څه يې نرخ دی! څه يې ارزښت دی.

ــ څـــو: چې د وګړو يا څيزونو شمير پوښتي نوځکه تل ډيرګړي دی لکه:

څو نجونې راغلې؟ څو هلکان راغلل؟ څو ختونه دې وييرل؟ البته څو په يوه بله مانايو کرول (قيد)

ــ پس (بسویش) چي نوم په توپيرکي بنيي لکه د زهرو گولي خورم پس ( ملنگ جان ) ۰

ــ باندي ( بالايش ) چي يو نوم په تون اوهغه هم په پورتني (استعلايي ) پيرکــ
بنيـــــــي لکـــه :

گل واي غورېدلي باندي ملاست وايږه اوته (خوشال )۰

ــ پري ( بران) هم ( باندي ) ورته د نده پرځاي کوي لکه :

ماپري سرکېښود ــ پيس مي پري پوردي ۰

ــ پــي ( به‌ان ) چي (په اوبري ) هم ويل کېږي په يوه لوښني (الي )پيرکــ
ديوه نوم ځاي نيسي اوله (پري ) سره يي په دي غونډ لوکي توپير کولاي شو :

زه په پښتو ليکه کوم( من به پښتو مي نويسم) زه پرېښتو ليکه کوم( من د رباره پښتومي نويسم)۰

ترې( ازان ) چي يونوم په وتون او تون او هغه هم په کښتني ( استفلايي ) پيرکي بنيي ۰لکه :

ماترې‌واخيست ــ ماترې لاندې کيښود ځيني له دغوويېکومخروسره پلوي نومځري‌هم
مختياري کيداي شي لکه را ــ در ــ وربانديي ۰۰۰ مگر دوريکي پرځاي ( ورکي ) ويل کيږي لکه
له نورو اويسرېلوسره ( ورلاندي ــ ورته ــ ورسره ــ ورڅخه ۰۰۰ )۰

۷ــ اړيک نومځري ( ارتباطي‌ضميرونه ) :چي‌په يوه غونډه له کي د تيري يا راتلونکي‌غونډه لي
له يوه څيز نوم يا نومځري سره راز راز اړيکي ټينگوي ۰ په دي توگه په دي وروسته بولـــو
ويشل کيــــږي :

ــ چــي : لکه خوازك چي د ببرك‌ورور دي ۰ ننگرهار ته ولاړ ــ ننگرهار يومښيمه ده
چي‌تودهٔ هوالري ــ زموږ هيواد په داسي ځاي کي پروت دي چي سمندرته لارنلري ــ هغه
کال ډ يرودان وي چي ډير اورښت ولري ــ زموږ هيواد د ومره ښکلي دي چي له سويس‌سره
سيالي کوي ۰ زه د ومره کتابونه لرم چي له شميره وتلي دي ۰

ــ چي يـــــي : يوتر بنتي ( ترکيبي ) يا د وه توکيزه ( د وه جزيي ) اړيک‌نومځري
دي ۰ چي هم په تيره غونډه له کي له راغلي نوم سره اړيکي ټينگوي اوهم د هغه کړندوالـــي
( فاعليت ) ، کړېوالي ( مفعوليت) اوتولوالي ( ملکيت يا اضافت ) څرگندوي ۰ لکه : پکتيايوه داسي
سيمه ده چي يي ځنگلونه نوم لري ــ سنگ ځکه بريالي شو چي يي زيار ايستلي وــ ماشوم
هله په ژړا شو چي يي مور ووهه ۰ په دي وروستي غبرگه غونډه له ( مضاعفـــه جمله )کي

( چې يې )هم له ( هله) سره اړيکی ښيي اوهم دماشوم کړيوالی ( مفعوليت) او تولوالی ( ملکيت له مور سره ) ؛

څوک چې : يوبل تړښتی اړيک نومځري دي چې يوالحې هغه وخت د څرمه غونډلی ( فرعی جملی )په سرکی راځی چې ترآ ري دمخه وي نوځکه وايو(څوک چې خوب کړي نري کتې به زيږوي )نه داچې ووايو ؛(نر کتې به زيږوي څوک چې خوب کوي يالکه اجمل خټک چې وايی : ( ځی ؛ هغه خواروته جنت وګټو-څوک چې له موره د وزخيا ن پيدادي )؛ د دي ګرامري بڼه داسی منيد اي شي چې دويمه( څرمه غونډله) پرلومړ ی ( اړي غونډلی ) دمخه کړو( څوک چې له موره د وزخيان پيدادي - ځی هغه خواروته جنت وګټو) او يا داچې څوک تري وغوږ ځوو ؛ په دي ډول دتورو ژبو لکه اروپايي هغو په پښتو نامه ... غونډه لو ييلګی دادي ؛

غرزي کد هار ته ولاړ ؛ څوک چې هلته خپلوان ګوري پتنګ په لومړ ي ګڼه بريالی شو چاچی زيار ايستلی و.....

سې يې : غرزي کد هار ته ولاړ چې هلته خپلوا ن وګوري- پتنګ په لومړ ي ګڼه بريالی شو چې يې زيار ايستلی و.........

همد اراز چيري چې - کله چې - کوم چې - څه چې - څوچې - څومره چې ...

... واخله ؛ لکه په دي غونډو لو کی : غرزي کد هار ته ولاړ چيري چې خپلوان ګوري - زه هيواد ته هغه وخت را ستون شوم کله چې ډيره وچويه وه - مايو ليکانی واخيست کوم چې ښه کارکوي- کا ر ښه دي څه چې نيکمرغی راوړي- پنځه کتابه مې واخيستل څوچې زما په کاررو- دومره غنم مې وپيرل څومره چې مې پيرلاي شول .....

... ښې يې : غرزي کد هار ته ولاړ چې خپلوان وګوري- زه هيواد ته هغه وخت راستون شوم چې ډيره وچويه وه -- مايو ليکانی واخيست چې ښه کار کوي- کارښه دي چې نيکمرغی راوړ ي- پنځه کتابه مې واخيستل چې زما په کاررو.....

په دي ډول پښتو له آره همدا یو ( چې ) هم دا ړیك ویکی په توگه کاروي اوهم یې دا ړیکـــــنومځري په توگه او د پورتنیو پو ښتنو ځرو ( څوك ــ کله ــ چیري ۰۰۰۰ ) ملگري کول ورسره بې ځایه دي په تیره په آره غونډه له اړ اپه د اس ځرمه کی چې تر آري وروسته راځي ۰ البته څوك ــ کله چیري اونور پوښتنو ځري چې له (چې ) سره ملگري کیږي یواځي د اړیکو ییکو (ارتباطي اداتو) چار څرگندوي نه داړیکو ځرو ۰ لکه څه چې کړي هغه به ریبــــــــي ــ څنگه غرهـس یې کرپوري ـ هله به خبرشي چې تاروجبې له ورشي ــ چیري دي بنــــــه هلته دي شپـــه ! څومره چې گوره اچوي هومره خوزیږي ۰۰۰۰۰

۸ــ غبرگون نومځري یا انعکاس ضمیرونه :

هغه نومځري دي چې ډیره چار هم کړند اوس او هم کړي په پښتو کی د اراز نومځري‌نومونو یاځانگړنو ځروسره د (( ځان )) په ملگري کولو لاسته راځي چې زیاتره په همدي یوه یوگړي ( مفرده ) بڼـه هرځاي را تلاي شي لکه : ځلمي ځان ژوبل کړ ــ ځلمي او زمري ځان (ځانونه) ژوبل کړل هغه‌ځان ژوبل کړ ــ هغوي ځان ( ځانونه) ژوبل کړل ۰ دپوره څرگندتیــــا لپاره له ځان سره (خپل )هم ملتیا کوي لکه هغوي خپل ځان ژغوره ۰

۹ــ ناڅکمنو ځري (ابهامي ضمیرونه) : چې ډیوه ناجوت (نامعین) رگړي یاخیز لپاره راځي او دبیلا بیلو دندو له مخي په لاندي ډول دي :

ــ هر ؛ چې زیاتره په یوگړي اره لري او دنوزي او پیر له مخي لزو ډیراوړون لري ؛ لکه هرځلمي ــ هره پیغله ــ هرځت( کمیس ) ــ هره گنډ ه ئ (کرتی ) ــ هري پیغلی ۰ په اوښتي ډیرگړي کی لکه هرو پنځوشاگردانو ته یو یو لیکی ورمید ۰ یا زه په هرو دوو اوونیوکی سینمــــا ته ځم ۰

ــ بــــــــل : یواځي د شمیرید ونکی یوگړي نوپېرځاي راځي اویا ورسره دنځوتنر ځري غوندې ملگرتیا کوي ۰ لکه : بل ځلمي ــ بله پیغله ــ دبل ځلمي دبلی پیغلی ۰۰۰

— نو ر : یزاخی د ډیرګړي یانوز نوم (جنس اسم) ښکارندوین اوملګري کوي اوخه ناخه اوړ ون لري لکه نور هلکان — نوری پیغلی — نورغنم — نوره وسپنه — نوره خاوره — نوري اوبه — دنورو هلکانو — دنورو پیغلو — د نورو غنمو — د نوري وسپنی — دنوري خاوري — دنورو خاورو — دنورو اوبو ۰۰۰۰۰۰

— ټـــول : دنورغوندې په ډیر ګړي او نوز نوم اړه لري اوله لویدیزي پښتو پرته هماغس اوړ ون موی لکه ټول هلکان — ټولی نجونی — ټول تیل — ټوله خاوره — ټولی خاوري — ټولو هلکانو — د ټولو هلکانو — ټولو نجونو — د ټولو نجونو — د ټولو تیلـو — د ټولی خاوري — د ټولو خاورو ۰۰۰۰۰۰

— واړ ه : د ټول هممانیزدي خوواخی د نوزي او پیرله مخی اوړ ون او اوښتون موس — لکه واړه هلکان — واړي نجونی — واړو هلکانو — واړو نجونو — واړه خاوره — واړي خاوري — دواړي خاوري — دواړ و خاورو ۰۰۰۰۰۰

— دوا ړه : تل دوګړي (تثنیـه) دي او د (واړه) غوندې په نوزي (جنس) اوپیر اړه نلري لکه : دواړه هلکان — دواړې نجونی — دواړو هلکانو — دواړ و نجونو ۰۰

— څه : پر ... پوښتنو مخري سربیره یو ناوړیدونی ناټیک نومځري هم دي لکه : څه می ولیدل څه نشته — چس نه کار هلته څه کار ۰ څه له نورو ناټیک نومځرو او ځینو ستاینو مونو سره تړښتی ناټیک نومځري جوړ وي لکه : بل څه — نور څه — هرڅه — هیڅه (هیڅ څه) لږ څه — ډیر څه ۰ هدارنګه له پیژند (یو) سره لکه یو څـــه ۰

— څــو : هم پرپوښتنو مځري سربیره یو ناوړیدونی ناټیک نومځري دي لکه : څو پیس می په کار دي — څو میاشتی په کار دي چی زه کتاب ولیکم ۰ څو له پیژند او ځینو ناټیک نومځروسره تړښتی ناټیک نومځري جوړ وي لکه : یو څو — هر څو — هیڅو (هیڅ څه) ۰۰

— ځینی : د ډیرګړي او نوز نوم ښکارندوین کوي لکه ځینی شاګردان ځینی شاګردانی ځینو شاګردانو ۰۰۰۰

ــ هیــڅ : دیوه ناټاکلی څیزیا څیزونو نشتوالی ښیی او کوم اوړون نلري • لکه :

هیڅ هلك ، هیڅ هلکان ، هیڅ نجلۍ ، هیڅ نجونې ـ هیڅ هلکانو ـ هیڅ نجونو

هیڅ غنم ـ هیڅ غنمو • • • • • له پیژند(یو ) او زیاترو ناټیك نومځرو سره دلومړي ټــوك

په توګه تړښتی ( ترکیبی )ناټیك نومځري منځ ته راوړي لکه : هیڅ یو ـ هیڅه ـ هیڅو ـ

هیڅو مره ـ هیڅ کوم ـ هیڅ بل ـ هیڅ نور ـ هیڅوك ـ هیڅکله ـ هیڅیري ( هیڅ څیري )

هیڅ دوار په یاپه دريټوکیز تړنګ ( دري جزئی ترکیب ) کی لکه : هیڅ کوم یو ـ هیڅ کوم

څوك یاپه څلورو ټوکیز تړنګ کی لکه : هیڅ کوم یونیم ـ هیڅ کوم یوبل • • • • • •

ــ څوك : هم پروښتنو مځري ( او اړیك نو مځري ) سربیره یوناټیك نومځــري

هم دي چی هم د څیزنوم ښکارند ویی کوي او هم د پیژند ( ارتیکل ) لکه : نن څوك راځی ـ

څوك یوکار کوي ، څوك بل ـ چاهی لیکانی واخیست ـ څوك سړي راروان دي ـ څوك ښځه

می ولیده • په نورو پیرونو کی لکه : چاته می لیکی ورکړي دي خواوس می هیر دي ـ له

چانه می لیکی واخیست بیاهی هیرشو ـ خپل کار په چانه کوم ـ ځلمی له چاسره پریوځلارنه ځی

زه څوك نه وهم ـ پرچا کار نلرم ـ څوك چی بل چاته کوهی کینی • پخپله پکی لویږي ـ

له ماسره د چاڅه کار دي په شپه کی چاته ورتګ ښه نه دي • • • • • •

له پیژند ( یو ) او ځینو نو رو ناټیك نو مځرو سره هم تړښتی ( ترکیبی ) ناټیـــك

نومځري جوړ وي • لکه : یوڅوك ـ هرڅوك ـ هیڅوك ـ بل څوك ـ نور څوك ـ څوك سړي ـ

کوم څوك ـ کوم چا یا لکه پیښو ریان چیوایی : چا ظالم می ژبه پریکړه •

ــ سړې : پرڅیزنوم او ستاینوم سربیره یوناټیك نومځري هم دي اوتر بلن پیره

پوري په تولو پیرووکی راځی لکه سړی دي هڅه کوي چی څوك تري ونه ځوریږي • بایــد

له سړي له لاسه داسی کارونه شی چی وروسته پري پښیمان شی ـ دلته د سړي هره هیله

نه پرځاي کیږي سړي دي سړي ته ګوري او بیا دي ورسره همغسی چلند کوي • لومړي دي

سړی سړي ته پوزنه ورکوي او که وربی کړ بیا دي تري ژرنه غواړي ـ وسړیه ستاله چاسره

څــــه کار ! له پیژند ( یو ) او ځینی نورو ناټیك نو مځرو سره تړنګونه ( ترکیبونه ) هم

جوړوي لکه یو سړی د یخوات را د روم – یوه سړي ته رازویل په کار نه دي – هر سړي (خو هر سړي پیدا دي خپل خپل کار لره که – خوشال ) – هیڅ سړی نه ښکاري – سړي سړي سم کاره نه پوېږي دي – له خوازك پرته بل سړي می ونه لید – څوك سړي زموږ خواته راځي – کوم سړي چې د سړي نه خوښېږي شه په کار چې پرمنه ورځي – څه سړي غزنۍ را د روي ۰ یو نیم سړي خپل زوند ته پام نلري – کوم نیم سړي می ونه لید – کوم یو نیم سړي راننځي ۰ ۰ ۰ ۰ ۰

– پلاني او بېستاني هم له عربي او دري (فلان – بهستان) څخه پښتو شوي نا ټاك نومځري ښکاري ۰ ۰ ۰ ۰ ۰ ۰

– ګډ تولنومځـــــري (اشتراکی ضمیر) ؛ پښتو د دري غوندي له (( خپل )) څخه پرته ور پاڼو سو بیره د بیره تولنومځري (ملکي ضمیر) کار هم اخلي او داچې د درواړ و وګړ و لپاره راځي نو ګډ تولنو مځري (مشترك ملکي ضمیر) بلل یې غوره دي ۰ لکه ؛ شپون خپلـــه رمه پیایي – رمه خپل شپانه پېژني – هرڅوك په خپل کار کې خوښ دي – ځینې خلك خپل ځان نه پېژني – ځلمي په خپله خونه کې کار کوي – خوازك خپل کورته ناوخته ځي – خوازك له خپل ورور سره ښا رته ولاړ – بړیله خپلو ملګرو څخه مننه وکړه – بړیالی له خپلـــې خوښې څخه نه اوړي ۰ ځینې پخپله ګناه نه پوهېږي خپل زیېږند او ناټیك ستاینوم په توګه هم کارول کېږي لکه خپله لاسه کله الا سه ! چې بیا هم یکی د تول (ملکیت) جاج (مفهوم) پروت دي ۰ په تکراري تول لکه په مخنی بیت کې (هو هر سړي پېدا دي خپل خپل کار لره که) خپل د نوزي او پېرله مخې ښپړ اوړون لري ۰ خودګـــهس له مخې نه ۰ له (( ځان )) سره غبرګون نومځري جوړوي لکه خپل ځان بې ژوبل کړ او له دي سره سره هماغه تولوالي او پېژندوالی د نده هم څرګند وي ۰

– تول – ځانګړي نومځري ( شخصی – ملکی ضمیرونه) چې د غښتلـــیو تولنو مځرو او غښتلیو ځانګړو یا نغوتنو مځرو په پرځای کېدو سره جوړېږي اوپه دي توګه پریوموخت

ددوو دوو نو مخرز دنده پرتاي‌کوي له همدي کبله دوه اړخيزاو ړون لري او هغه هم دنوزي ــ گنهس ــ پيراو وگړيله چې مخې ځانگړي ورسره يواځې په دريم وگړي اړه لري . لکــه :

ا ــ تول نومځري‌ـ يوگړي ځانگړ نومځري :

| گنه / وگړي | يوگـــړي | څوگـــړي |
|---|---|---|
| ا | هغــه<br>هغــه<br>زمادي ــ هغه( ده ــ هغه)<br>زمادا ــ هغه( دې ــ هغې ) | زموز دي ــ هغه (ده ــ هغه)<br>زموز دا ــ هغه (دې ــ هغې) |
| ۲ | ستادي ــ هغه( ده ــ هغه)<br>ستادا ــ هغه( دې ــ هغې ) | ستاسي دي ــ هغه( ده ــ هغه )<br>ستادا ــ هغه( دې ــ هغې ) |
| ۳ | دده دي ــ هغه ( ده ــ هغه)<br>دهغه‌دي ــ هغه( ده ــ هغه)<br>ددې دا ــ هغه ( ده ــ هغې )<br>ددې هغه ــ هغه ( ده ــ هغې ) | ددوي دي ــ هغه( ده ــ هغه )<br>ددوي دا ــ هغه( دې ــ هغې ) |

۲ ــ تولنو مځري‌ـ څوگړي ځانگړ نومځري :

| گنه / وگړي | يوگـــړي | څوگـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | زما دوي ــ هغوي | زموز دوي ــ هغوي |
| ۲ | ستا دوي ــ هغوي | ستاس دوي ــ هغوي |
| ۳ | دده دوي ــ هغوي<br>دهغه دوي ــ هغوي<br>ددې دوي ــ هغوي<br>دهغې دوي ــ هغوي | ددوي دوي ــ هغوي |

۳ـ تولنو مخري+ اشاره یوګړي نغوتنو مخري :

| ګڼه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | زما دغه ـ دغه ـ دغې | زموږ دغه ـ دغه ـ دغې |
| ۲ | ستا دغه ـ دغه ـ دغې | ستاسې دغه ـ دغه ـ دغې |
| ۳ | د ده دغه ـ دغه ـ دغې | د دوی دغه ـ دغه ـ دغې |
| | د هغه دغه ـ دغه ـ دغې | |
| | د دې دغه ـ دغه ـ دغې | |
| | د هغې دغه ـ دغه ـ دغې | |

٤ـ تولنومخري لیریوګړي نغوتنومخري :

| ګڼه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | زما هغه ـ هغه ـ هغې | زموږ هغه ـ هغه ـ هغې |
| ۲ | ستا هغه ـ هغه ـ هغې | ستاسې هغه ـ هغه ـ هغې |
| ۳ | د ده هغه ـ هغه ـ هغې | د دوی هغه ـ هغه ـ هغې |
| | د هغه هغه ـ هغه ـ هغې | |
| | د دې هغه ـ هغه ـ هغې | |
| | د هغې هغه ـ هغه ـ هغې | |

٥ـ تولنو مخري لالریوګړي نغوتنو مخري :

| ګڼه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | زما هوغه ـ هوغه ـ هوغې | زموږ هوغه ـ هوغه ـ هوغې |
| ۲ | ستا هوغه ـ هوغه ـ هوغې | ستاسې هوغه ـ هوغه ـ هوغې |
| ۳ | د ده ״ ״ ״ | |
| | د هغه ״ ״ ״ | |
| | د دې ״ ״ ״ | |
| | د هغې ״ ״ ״ | |

او همداسې د دویم توک ډیرګړي هم اوړون مومي · دادي د تول ـ ځانګړنومځرو دپوره ځرګندتیا لپاره څو بېلګېزي غونډ لی (جملي) وړاندي کوو :

ایمل : زما زوي ناروغ دي ·

خوشال : زما هغه هم ناروغ دي ·

ایمل : زمازوي ښوونځي ته ځي ·

خوشال : زمادي لا کوچني دي ·

ایمل : زما وراره ښوونځي ووایه ·

خوشال: زما هغه هم ووایه ·

ایمل : زما ماما اس واخیست·

خوشال : زما هغه هم واخیست ·

ایمل : زماورور ځلمي ته یو لیکي ورکړ ·

خوشال: زماده هم هغه ته یو لیکي ورکړ ـ زما هغه هم هغه ته یولیکي ورکړ ·

ایمل : زمالیکي ځلمي واخیست·

خوشال : زما دازمري واخیست ـ زما هغه زمري واخیست ـ زما داهم ده واخیست ـ زما هغه هم هغه واخیست ·

ایمل : زما ورځني ګټه سل افغاني ده ·

خوشال : زماداده سوه افغاني ده·

ایمل : دده کور لري دي ·

خوشال: دده دا نژدي دي ـ د ده هغه هم لري دي ·

ایمل : دهغه مور ناروغه ده·

خوشال : دهغه هغه هم ناروغه ده ـ دهغي هغه هم ناروغه ده ·

ایمل : ددې ورور زما ټولګیوال دي ·

خوشال : ستادي بیا زما ټولګیوال دي ·

دویم ــ ویبکی (ادوات PARTICLES ) :

د اهم د ناوړیدونیو یا ازاد و ګړونو ( مورفیمونو ) یوه غوره برخه د ه او بیلګیں په دي وروسته ډول دي :

۱ــ اړیکوییکی ( ارتباطی ادات CONJUNCTIONS ) : چی څومره والی او څرنګوالی یا ورته والی له مخی سره اړي او څرمه غونډلی ( جملی ) نښلوي او په دي توګه دوه دوه سره غاړه کیږي چی له لومړي سره یی زیاتره ( چی ) هم ملګري کیږي که څه هم ( چی ) پخپله ځانته یو اړیکوییکی هم دي . او په ګډه د دوو توټو یا غونډ لو اړیکی ټینګوي لکه څومره او هومره دي غبرګه غونډ له کی . څومره دیګ هومره تیپر . نوري د اسی جوړي لکه : څنګه چی ــ هسی . که څه هم ــ بیا هم . څومره چی ــ هومره یا هماغومره . چیري ــ هلته ( چیري دي بنه هلته دي شپه ) هسی ــ داسی ــ همداسی ــ همدارنګه ــ همداراز ــ هغسی ــ هماغسی یا همغسی ــ خو ــ مګر همدومره ــ په همدي ډول ــ په همدي راز . چی ــ نو . . . . په کندهاري ګړدود کی ځکه هم د څنګه پاره پرځاي کوي لکه چی وایی ځکه چی ناروغ وم نو د رمل می وخوړل . ( که ) بیا په اړو ییکو کی یو اړوییکی دي چی د دوو غونډ لو ترمنځ یواړ ( شرط ) ټینګوي لکه که ته راشی نوزه به هم راشم .

۲ــ ورتنی یا تشبیهی ویبکی چی په د ودیز ګرامر او ادبی فنونو کی یی ( حروف تشبیه ) بولی هغه ویبکی دي چی د دوو یا زیاتو څیزونو یا پدیدو ورته والی او مشابهت ښیی لکه : لکه ــ غوندي ــ په څیر ــ په رنګ ــ په شان ــ په دود ــ په توګه ــ په ډول ــ په راز . . . .

۳ــ تړوییکی ( عطف توري ) چی دوه توکونه ( ویبی ) یا غونډ لی سره ملګري کوي لکه او ــ و ــ که ــ یا ــ سره په دي بیلګو کی : باغ وا ي د ګلونو پکی ناست وای زه او ته ــ ( و ) او ( او ) سره هممانیزدي او واړه غزیز ( فونو لوژیکی ) توپیر سره لري همدغه ( او ) دي چی په زیاته کاریدنه پر ( و ) اوړي لکه موروپلار ــ خور و ورور مګر که له خپلواکپاي ویی سره بل ویی تړل کیږي نو په اره بنه راځی لکه کاکا او ماما . . .

بل د اچی زیاتره (او) یو نحوي تړون ښيي او (و) یو لغوي تړون ..... همدارنگه (که) او (یا) هم همدانيز تړوبيکی بلل کیږي لکه ښه که بد ښه یا بد ــ (سره) له نورو تړوبيکو سره د اتوپير لريچی د ملگرو توکونو (ویيو یا غونډ لو) ترمنځ نه بلکی تړيوروسته راځی او هغه سره تړي یاملگري کوي ۰

٤ــ تولوبيکی (اضافت توري) چی ځیزونه یاپديدي سره یو له بله اړوندوي یا یود بل تول او ملکيت کوي په جوليز ډول پښتو یواځی یوتولوبيکی (د) لري لکه : د هلك خولی ــ د پښتو ټانگه د اسمان ستوري ...... داچی پښتو ټانگه یا دري ټانگه ــ ادب پوهنځی یا کابل پوهنتون بی (د) ویل کيږي دليل دادیچی په لومړيو دوو ساريو (مثالو) کی پښتو اودري د نورو ژبنی نومونو غوندي د ستاينومو بڼی غوره کوياو ستاينوم په پښتو کی په خپل ځيز نوم پوري سيد ه نښلی نور ساري يی لکه : افغان اولس ــ باختر اژانس ــ پښتون ځلمی اوداسی نور ۰ او ادب پوهنځی یاکابل پوهنتون دنومونو او تړکونو (ترکيبونو) په توگه د (د) غوندي یونحوي توك ته نوره اړ ه نلري : نور ساري یی لکه : طب پوهنځی ــ پلان وزارت ــ دفاع وزارت اوداسی نور ۰ (د) د تولو الی ترڅنگه لږ و ډیره مهالی پاره هم ترسره کوي لکه د شپی ــ دورځی ... مگر د سربل په توگه د (د) کارونه دليکنی معیاري پښتو له بنسټو څخه چپه بريښی لکه د ځلمی سره دکدهار څخه راغلم ۰ همدارا زله تشبيهی ويیکو (غوندي ــ په څير ــ په رنگ ...) د یوه (سربل) پهتوگه هم غاړه کيږي لکه د زمري غوندي .... له (ــ پاره) سره نن سبا د ومره نه مل کيږي بلکی پر (له) اوښتی دي ۰

٥ــ سربلونه ( PREPOSITIONEN ) او اوستربلونه ( POSTPOSITIONEN ) :

سربل یا پیشينه هغه ويیکی دي چی تر یوه نوم د مخه راځی او په یوه غونډ (فقره) یا غونډ له کی د هغه نوم پير اودريځ ښيي ۰ لکه (په) په (په کورکی) ــ (له) په (له ښوونځی څخه) یا (له ځلمی سره) (تر) په (ترکوره پوري) ــ (په) په (په تاپوري) اوداسی نورو بيلگو کی ۰ په د يتوگه موږ گورو چی یو سربل د یوه بل ويیکی په ملگرتيا چی ترنوم څخه وروسته راځی ۰ نوم په تون ــ وتون اوداسی

نورو پیرزکی اچوي دغه ترنامه وروسته ملګريوییکی یې (اوستربل) یا پسینه بلل کیږي ° سره له دي چې سربلونه او اوستربلونه دغونډل (جملی) یا په بله وینا په ناخپلواکو او مرستیالو توکونو کی راځي اومانا اوپازه یې د هغو نومونو یا کړونو او کړ ولونو په ګاونډ یتوب کی څرګندیدا ي شي ° خود اچې پردغو اړو یا خپلواکو توکونو یو ډول اغیز لري او د هغو د ریځونو او پیرونـــه (حالتونه) څرګندوي نو اد اره کوونکی ــ چلوونکی یا واکمن توکونه هم بلل کیږي (په نحويتجزیه کی به پري پوره خبريوشی) ° د دغه پورتنیو یازو اوندو له پلوه سربلونه او اوستربلونه په دي وروستیو ډولو ویشنه مومي :

۱ــ په ــ چې له (کی) اوستربل سره د اړوند (مربوط) نوم تون پیر یا ظرفی حالت څرګندوي لکه (په تږلګی کی) ــ له (پوري) اوستربل سره یو بل ډول تون پیر یا په بله وینا یوپیو ستون ښیي لکه په ځان پوري ــ په تاپوري ــ ستاپه خبري پوري (بارتباط ګپ شما) ــ له (ســره) اوستربل سره یو لوښتیپر (الی حالت) را ښیي لکه په بیاتی سره ــ په چړي سره ــ په وینا سره ــ په زور سره ــ په خوښی سره ــ له (پسی) اوستربل سره یو بل راز تونپیر یا پرله پسی والـــی څرګندوي لکه : په تاپسی ــ په سختی پسی اسانی راځي ــ په ژمی پسی پسرلی دي لکه په پورتنیو بیلګوکی چې لیدل کیږي کله کله تري ملګري اوستربل لویداي هم شي لکـــــه : په خوښه که په زوروي له مظلوم به د ظالم لاس لنډیږي په تا اړه نلري (په تاپوري اړه نلري) ــ په لیکانی لیک کیږي (په لیکانی سره لیک کیږي) ° مګر (په کور) له (په کورکی) سره یوراز نه دي ځکــــــــــــــــــــــــــه (پــــه کــــــــــــــور) له اره (پرکور) دي چې ظرفی نه بلکی استعلایی مانا ښندي ° همدارازپه وخت ــ په کال ــ په مازیګر ــ په بجو °°°°° د پروخت ــ پرکال ــ پرمازیګر ــ پربجو °°°°° ناسم یا ناکره بڼی دي ° همداخبره ده چې موږ (پمپښتولیکل) او (پرپښتو لیکل) سره توپیروو °

۲ــ پر ــ یو باندینی (استعلایی) وییکی دي چې یو اړوند اوستربل (باندي) یې زیاتره غوږ ځیږي لکه پرمیز باندي یا پرمیز ــ پرځمکه باندي یا پرځمکه ــ پرزړه باندي یا پرزړه ــ

پرسربانديي یا پرسر — پرزړه یو څه پرخوله بل څه — پروخت — پرکور — پرکابل — پرلسو بجو — پر ۱۳۵٦ کال اود اسې نور ۰ پرهم د (په) غوندې زور پای نه لري موږ پر افغانستان ټوله خپله ادبي ژبه نومونه پر افغانستان پوره اړه لري ۰

له کندهاري او تاریخي ادبي پښتو پرته نور زیاتره ګړدودونه (په) او (پر) سره ګډ وي په یوه وخت یاد واړه په الی — ارتباطي او تسلسلي مانا کاروي په بله وینا دواړه د (په) پازه پرځای کوي او یاد واړه په استعلایي مانا یا په بله ژبه دواړه د (پر) دنده تر سره کوي ۰ لکه د (په پښتو لیکل) او (پرپښتو لیکل) بیالګي چې د (په) په برخه کې راوړل شوې ۰ په یوه کره لیکنۍ پښتو کې د دغه دواړو سربلونو توپیر ضروري دی ۰ یوازینی ارهم دا دی چې د وه توکونه یا د ودونه په تاریخي او اتمولوژيك ډول هیڅکله همسا نیزاو همپازیزنه وي د همدغه اړه په ترڅ کې سپمایس ارهم سمبالیزي که په ګړنیو ژبه کې دغه ارونه د ومره پرځای هم نشي مګر په لیکنۍ ژبه کې څو اړخیز ګټور نقش لري ۰ توپیریانه ګډوون — کارویش او پسپط د نړۍ د هري ژبې بنسټ جوړ وي ۰ په دې توګه په کارد ي (په پښتو لیکل) د اسې مانا کړ و چې یو څه په پښتو ژبه لیکل کیږي نه په بله ژبه ا (پرپښتو لیکل) د امانا چې د پښتو په باره کې څه لیکل کیږي نه د بلې ژبې یا بلې موضوع په باب همدا راز پرکابل اوسیږم د امانا چې د کابل د ښار په شا وخوا کې اوسیږم او په په کابل کې اوسیږم د اچې د ننسه په کابل یا کابل ښار کې ۰ په پارسي کې هم د (به) او (بر) توپیر په زړه ادب او اوسني ایراني ادب او لیکنه کې پوره څرګند دی ۰ د (پر) بل اوستربل (سرپیره) دی چې ناکره ډول یې (پرسیره) هم لزو ډیر د ود لري ۰ دغه اوستربل هیڅکله نه غورځول کیږي که د مانایي له (باندې) سره ګډ یږي او یو کیږي ۰ پرد و ییکو مخري (اداتي ضمیر) — پري — پرځای کارول چې کندهاري ګړ دود و اړه لري هم د یاد شوو ژبنیو ارونو له مخې په ټولیزه لیکنۍ پښتو کې د منلو وړ نه بریښي ۰ همدا اسې تراوسه هم د رواخله چې له تري او پې یا پري سره ګډول ګډ و ډوي پیښوي ۰

۳ — تر — چې د (پر) بله (مقابل) سربل دی هغه د اچې ترهرڅه د مخه د پرغوندې د (باندې) نه چې د (لاندې) اند بسندي له دې کبله یې لومړي اوستربل (لاندې) دی چې هیڅکله غورځیدنه نه مني لکه (ترمیز لاندې) چې (ترمیز) بیا ګرد سره باله مانا بسندي

اوهغه تونی او مهالی پیوستون دي لکه تر ننګرهاره ــ ترمازیګره چې اوستربل (پوري) یــــې هرو مرومطلقیانکوي · د ریم اوستربل یې (ورسته) یاراوروسته کړ ول دي لکه ترغرمی وروستــه یا ترغرمی راوروسته ــ ترخلمی وروسته زما واردي ···· له خلورم اوستربل څخه (ځنې ــ نه) سره پرتلیز جاج ښندي لکه تر تاڅخه زه ښه یم چې د دغه اوستربل په غورځیدو (ترتا) هم سم راځی · د دي پرځاي چې د نورو ژبو په ښســـو ــ سړنی کال د پروسږ کال په نسبت ډیرورندي (بارندهٔ) دي ــ ووایو (سږنی کال ترپروسږ کال ډیرورندي دي) لنډه او کره راځی · (تر) په دغه پرتلیزه (نسبتی یا تدرجی) مانا له (له) سربل سره هممانیزکیږي خودا چې (له ــ څخه) ترهر څــه د مخه وتون پیر (منشایی) حالت ښرګندوي ·نو بیاهم له (تر ــ څخه) سره یې ګډ ول په کارندي ــ یالز ترلیزه (تر تاځنې) وکارول شي · له تولوییکي (اضافت توري) ــ د ــ سره یې ونجول هم یې ځایه دي لکه ننګرهاریان چې وایی: دکوره په ساراخوښ یم ــ د ویشه په تالا · خودا چې په کډه کره لیکی پښتو کی د لته د پرتلی مانا موخه (مطلوب) د ه نو (ترکوره پرسارا خوښ یم ــ ترویشه پرتالا) تري سم بریښی اوله کوره پرسارا خوښیم ــ له ویشه پرتالا) د ومره تیــک اوغوره نه راځـــی ·

دغه راز په ختیزو ګړ دودوکی د (په) ــ (تر) ــ (له) پرځاي هم زیاتره (د) کارول کیږي چې دا هم له ژبنیو او معیاريارونو څخه چپ بلل کیږي لکه د ځلمی پسی ــ د ننګرها ر پوري ــ د میزلاندي ــ د ننګرهارنه ــ د ځلمی سره د کندهاره راغلم ــ د پښتو تولنی د لغاتو د څانګی د خوا ــ د تانه یا ستانه زه ښه یم ····· کره ډول یې: په ځلمی پسی ــ ترننګرهارپوري ــ ترمیز لاندي ــ له ننګرهاره له ځلمی سره له کندهاره راغلم ــ د پښتوټولنی د لغاتو د څانګی له خوا ــ ترتا (څخه) زه ښه یم ·····

٤ــ له ــ چې له (څخه ــ نه یا ځنې) اوستربل سره له اره د یوه نوم (وتون پیر) منشایی حالت ښرګندوي لکه له سیستانه یا له سیستان څخه یا له سیستان نه اویا له سیستان ځنې · په د یمه (نسبتی) مانایی کارول یې د ومره کره نه بریښی لکه پاس چې ورته ګوته ونیول شوه ·

(له) له دويم اوستربل (سره سره د ملگرتيا (معيت) جاج ښندي لکه له ځلمي سره تر هرات پورې ملگري وم او داسې نور. په دغه مانا يې اوستربل (سره) پر (څخه يا څه) اړول له گړ ي کره ليکې پښتو څخه چپ بريښي په بله وينا بايد (له ځلمي سره) او (له ځلمي څخه) په يوه مانا ونه کارول شي. د ريم اوستربل يې (وروسته) دي چې مهالې او تونې کړول (قيد) ورسره جوړ وي او له (تر) سره يې پازه يو کيږي لکه لرغرمې وروسته کورته ځم چې البته (ترغرمې وروسته تري) زيات غوره بريښي په بله وينا (وروسته) د (له) نه بلکې د (تر) معياري اوستربل دي. څلورم اوستربل يې (راهيس) دي چې يو مهالې کړول ورسره جوړ وي لکه له پروسږ کال راهيس – له پيرو کلو راهيس – له پخوا راهيس .... ناکره يې: د پروسږ کال راهيس – د پيرو کلو راهيس – د پخوا راهيس ...... په دې توگه (راهيس) د يوه اوستربل په توگه بايد په (نوم) سيده ونښلول شي او يل کوم زياتې اوستربل يا بل ژبنې توک تري د مخه نشي په بله وينا (له پيرو کلو څخه راهيس) نه بلکې (له پيرو کلو راهيس) وويل شي (د پيرو کلو را په ديخوا) هم مانيز اندول دي خود پارسي (ازسالها باينطرف) تکي پرتکې اړونه ده او د ومره رواني اولنډون هم نلري. د (له) پنځم اوستربل (پرته) دي چې د (سره) په او مقابل جاج ښندي دا مانا چې د اړوند نوم ملگرتيا نه چې بيلتيا اونشتوالي څرگندوي لکه له بلليو پرته نابللې هم راغلي وو.

ه– بې – چې زياتره د (نا) غوندي يوستاينوميز (صفتي) مختاړي دي لکـــه بې کوره. خولږ وډيره سربلې ځانگړتيا هم لري او هغه هم زياتره د (له) په ملگرتيا او د يواځينې اوستربل (څخه – نه يا ځني) په د رلودلو. لکه بې له تا څخه – بې له هغه څخه چـــې له تا او بې له هغه هم ويل کيږي مگر (بې تا) ويل کيږي او (بې هغه) نه.

---

ه (بې) تل يو خپلواك سربل نه دي.

٦– و – يو پخوانې سربل دي چې له (ته) او ستربل سره ورتلون پير (مفعول له حالت) څرگندوي چې پخوانې څرك يې په لويديزو (کندهاري) گړ دود وکې پاتې دي او نورو تولو گړ دود وله لاسه ورکړي او د هغه اوستربل (ته) يوستري کاروي لکه: وتا ته وايم – وښوونځي ته ځم...

دمنځنی دوري شاعرانو هم ډیر کارولی اولا کله یې د ویمځلی ترنوم وروسته هم راوړي او اوستریل (ته) سره بیا هم پتلیز (جرخت) نښلولی لکه رحمان بابا چې وایي : خدای وماوته ښکاره کړ هغه لمرپیا [illegible] بې [illegible] هم کارولی دي لکه : پیرمحمد کاکړ چې ویلی دي : سوزگداز د محبت هسې وماړا ۰ په هره توگه د ویونکو د ډیر ښت په لا سوند تر (و ــ ته)، (ــ ته) زبات معیاري ارزښت لري ۰

۷ــ د ــ که څه هم په ترلیز ډول یو تولویکی دیخوله (غوندي) اړداس نوروتشبیهی اوتونی ویکو سره د سربل په توگه هم راځي خوبیا هم د تولوالی ځانگړتیا نښي لکه د ځلمی غوندي پــه رنگ ــ پرڅیر ــ په ډول ــ په راز ــ په توگه ــ لپاره د کوردننبه ــ دکوردباندي ۰۰۰۰ چې ترکورډننه ــ ترکورډباندي باید دانا ورکړي ۰ چاپیر ــ چارچاپیرپاگرد چاپیر ــ تاوراتاو ــ کښته ــ پورته ــ پاسې ۰۰۰ هم د تراوستریلونه دي ۰ پرپورتنیو ویکو سربیره ۰ ځینی نور راز راز ویکی هم شته چې په غونډ له کی بیلا بیلی پاڼي لري په دوي کی د ځینو پاڼي صرفی بدلل کیږي او د ځینو نحوي او ځینو دواړه ډوله ۰ صرفی لکه (به) چې د نا بشپړ اونا خبري (لکه گومانی) اړاو ستر مهال کړ یږونك جوړوي یا (نه) اړ (مه) چې کړ نفی یانهی کوي ۰ یا (که) چې اړ ویکی دي ۰ غونډ له پوښتیا نحوي لکه (نه) د منفی ځواب په توگه ــ (هو) د مثبت ځواب په توگه. چك (ولی نه) هم ځواب په توگه ــ (سره) په صرفی ډول لکه سره تلل ــ په نحوي ډول یا په بله وینا د اوستربل په توگه لکه له ځلمی سره ولاړ ــ (بیا) د کړ ول او هم اړیکو ییکی په توگه ــ (مگر) یا (خو) د اړیکو ییکی په توگه ــ کورت ــ بیخی ــ چور ــ هډو ــ سوچ ــ چورلټ ــ ورټ ــ بیخپوره ــ لا ــ ان ــ هن ــ ایله ــ په متهی یا متهی ۰۰۰ د مرستیالو کړ ولونو په توگه ــ و ــ یه ــ یا ــ آ ــ او ــ ای د بلن ویکو په توگه ــ (ایا) د پوښتوییکی په توگه ۰ پاروییکي لکه اخ ــ اړخ ــ اوښ ــ اوه ــ آه ۰۰۰۰ چې د ناڅاپی خوښی یاویري اوداسی نورو هیجانونو (پاریدنو) ښرگندونه کوي چې تراړو او مرستیالوتوکونو وروسته دغونډلی د توکونو دریمه ډله جوړوي او پرخپل ځای څیړل کیږي ۰

وښا وابنتی یا تکیه کلامونه لکه ماسکه – غوله یا غولی – مړه – یامړي – غوچې – چې دي ... کاکا گوري – ماما گوري ... هم لـېزو ډېر په یوستوو او تړښتس ویکوکی راځی . چې د یا ریلن ویبکو یا پارویبکو غوند ې نومونی پازه نه پرځای‌کوي بلکـس راز راز ننگیرنی (احساسات) څرګندوي .

### ۳ـ کــــړاوونــــــه

۱ـ کړڅه رازګړ دي؟ څه او ځنګه څرګندونه کوي ؟

۲ـ مصدر له کړ سره څه اړیکی لري اودغه نومونه (اصطلاح ) د څه لپاره کارول کیده او کارول کیږي ؟

۳ـ دیوه کړ بنسټ او اساس څه شیز دي اوبه څه نامه یادیږي ؟

٤ـ بو اوړون موندلی کړ څومره توکونه اوچارونه درلوداي شي ؟

۵ـ مهال پرڅو ډوله دي ؟

٦ـ کړنوزي څه ته وایی اوپرڅو ډوله دي ؟

۷ـ وګړي‌اوګنـه سره څه توپیر لري ؟

۸ـ چاروال– بیچار او منځوال کړ په‌یو یو ساري (مثال) راوپیژنی ! .

۹ـ کړ نوم‌یا حاصل مصدر څه ته وایی او څو ډوله جوړیداي شي ؟

۱۰ـ توانی کړ ځنګه جوړیږي ؟

۱۱ـ بشپړ (مطلق ) اونابشپړ (غیر مطلق )کړ سره څه توپیرلري ؟

۱۲ـ لراولنډ کړ په یو یو ساري‌وښیاست ؟

۱۳ـ کوزاتیف‌یا لیزند چارکړ څه ته وایی ؟ له‌یوه ساري سره یې وښیاست !

۱٤ـ کړول څه ته وایی ؟

۱۵ــ د اوروسته غونډ ونه یا عبارتونه کوم کوم ډول کړولونه دي او په غونډ لو کــی څه پازي پرځاي کوي ؟

په سیرانه ــ په ځغرده ــ په ډاگه ــ ډانگ پیلی ــ هرو مرو ــ هیڅکله ــ ژرــ ژرژرــ ورو ــ په ورو ــ په زور ــ په خوښه ــ په ناخوښه ــ وروورو ــ دلته یا دلی ــ هلته یا هلی یاهله ــ دننه ــ دباندې ــ دلاندي ــ شاوخوا ــ گرد چاپیرــ دپاسه ــ کښته ــ له کښته ــ پورته ــ له پورته ــ په لوي لاس ــ په غلا ــ په پټــه ــ په ښکاره ــ په څرگنده ــ په غوړ اوږ یاپه غوړ مالی ــ په ټيټو سترگو ۰۰۰۰ نن ــ پرون ــ وړمه ورځ ــ سبا ــ بل سبا ــ پروسږ کال ــ کال ته ــ بل کال ته ــ پسرلی ته ــ د شپې ــ د ورځي ــ غرمه ــ ماښگر ۰۰۰۰

## ٤ــ کړاوونه ( تمرینونــــــــه )

۱ــ سریل څه ته وایي او ستریل څه مانا ؟

۲ــ پښتو ټول څو سریلونه او او ستریلونه لري او هغه کوم دي ؟

د دې لاندې غونډ لو تشځایونه په سمو سریلونو او ستریلونو ډک کړي !

۳ــ ۰۰۰ کابل کې دژمی سارډ وي ــ ۰۰۰ زړه به دې یوه وي ــ درپیښه به شي بلهــ زه ۰۰۰ لیکانی سره لیکل کوم ــ زه ۰۰۰ انگلیسی ۰۰ روسی ښه غږ یداي شم ــ کوچیان داوړي ۰۰۰ کابل وي او دژمی ۰۰۰ ننگرهار ۰۰ اوسی ــ زما په کالیو ۰۰۰۰ مه خانده ! سپین ۰۰۰ تور اوښتل یابدلیدل ــ اوبه ۰۰ ډانگ بیلول ــ ۰۰۰ زده کړې پسی ملا وتړه ! په تا ۰۰۰ اړه نلري ــ زه کور ۰۰۰ پنځو بجو ځم ــ ۰۰۰ غره باندې واوره اوري ــ ۰۰۰ ډیوي لاندې تیاره ده ــ ځلمی سرپیره زمري هم راغی ــ ۰۰۰ ځلمی پرته نور ټول ولاړل ــ ۰۰۰ ټولگی دننه ــ ۰۰۰ ټولگی دباندې ــ سپوږمی ۰۰۰۰ منځ داسمان راغله ــ یاخوخوب نشته یا خوبا ۰۰۰ نه راځینه ــ که غم ۰۰ غمه شرمیدلای ــ ۰۰۰ مابه نه راتلاي ځولی ځولی غمونه ــ ۰۰۰ تور ټوپک ویشتلی راشی ــ

دبن ننگی اوازدي مه را ځه مینـــه ! دیار ۰۰۰ پاره درمســـــال جاروکومـــــــــــه ۰۰۰
گودر سور سالو بنـــــــــــکاره شـــو - اشنامی سر ۰۰۰۰۰ وطن کیښود - ۰۰۰۰۰
تار د زلفو به کړن ورته ګډیږ مه - که زما عمر ۰۰۰۰ ضرور وي تیر به شینه ۰۰۰۰ لویو غرود خدای
نظردي ۰۰۰ لمن ۰۰۰۰ یی زیړ ګلونه - که ولاړ شي ۰۰۰ بلخه درسره د ه څپله
برخه - ګلاب ۰۰۰ اصله شاهزاده دي - رامبیل چامبیل یی اردلیان ورسره ځینه - ۰۰۰۰
ګودر څه کانه راوشوه - چی کشره خوریی ورسره ګودر ۰۰۰ ځینه - ما ۰۰۰۰ په سرو زرومنظور
دی - که دجانان ۰۰۰ لاسه توري خاوري وینه - خپه پري نه یم ۰۰۰ جانان سره به یمــه -
۰۰۰۰ خدارو سترګودي جارشم - چی ۰۰۰ ژړ اشی مرغلري تویونه - ۰۰۰ وچه به اګـــه
دلونګو بوي راځینه - زما ۰۰۰ تشه خند استه - مابه جانان ۰۰۰ لاس نیولی ګرځوونـــه
که شینکی خال می د چړ و ۰۰۰ څوکو ځینه - چی ۰۰۰ سنګره پوري زه درسره ځمـــه
سپوږمی ۰۰۰ دي څه احسان دي - زما جانان ۰۰۰ دیواله سیوري ته ځینه ۰

دپښتو ګړ ونو ( مور فیمونو ) د ډلبندۍ انځور لیــــــــــــک



د ریمــــــه برخــــــه

غونډ له پوهه ( نحــو SYNTAX )

لکه څنګه چې دغږ پوهې دوېيني یوون ( د بحث واحد ) غږ دي او دګړ پوهې هغه ګړ ليې نو دغونډ له پوهې دوېيني يوون غونډ له ( جمله ) ده ۰ په بله وينا غونډ له پوهه د غونډ لو ــ دغه راز دغونډ ونو ( فقرو ) او ګړ نو ( ايډيمونو ) جوړ ښت او پرولونه ترکتني اووينس لاندې نيسي ۰

غونډ له ( جمله ) :

غونډ له د ګړ ونو او ټيزنو يو داسې اوږ لړ غونډ ( کل ) دي چې يو بشپړ جاج ( مفهوم ) او برخه ( مطلب ) ترې پوهول کيږي ۰ له بله پلوه داچې خبرې يا وينا په غونډ لو کيږي او د غونډ لو خبرې او وينا نه تر سره کيږي ۰ نو داسې يې هم پيژندلای شو : غونــډ له دخبرو ـــ وينا يا ګړ هار هغه بشپړ ، خپلواکه نا شننونې رغاونه ده چې تيري بلـــه ستره رغاونه نشته ۰ په بله وينا : غونډ له دخبرو او وينا تر ټولو لوي يوون ( واحد ) دي ۰

دغونډ لې جوړ ښــــت :

غونډ له لومړي پړ دوو برخو يا غونډ و نو ( فقرو يا ګروپونو ) ويشل کيږي چې يـــو يوه ته نوموال ( اسمي ) او بل ته کړ وال ( فعلي ) غونډ وايي ۰ دپاري له مخې نوموال غونډ ته ايښې ( مسند اليه ) او مبتدا ۰ ـــ او کړ وال غونډ ته ايښونې ( مسند ) يا خبر هم ويل کيږي ۰ په ايښونې کې ياکړ ند له خپلوا ړ وند و سره راځي ( که په چاروال کړ اړه ولري ) او يا کړ ي له خپلو اړ وند و سره ( که په پيچار کړ اړه ولري ) ۰ په ايښونې کې کړ او کړي د وار ه له خپلو اړ وندو سره راځي په دې آړ چې کړ چاروال ليږ ندوي که نه يوازې کړ له خپلو اړ وند و سره راځي ۰ دکړ ند او کړي اړ وندونه ستاينوم ـــ شمير نوم ـــ ټولنوم ( مضاف اليه ) ـــ تولوييکــــ ـ پيژند وييکي او داسې نور ضروري وييکي کيداي شي او دکړ هغه کړ ولونه ( قيدونه ) ۰ په دې

توگه‌تول لوي اووا ړه یا خپلواك (ازاد) اوناخپلواك یا ناوریدونی ګروښه اوتوکونه په یوه غونډله کی راغونډیدای شی اود همدغو توکونو په کموالی اوزیاتوالی سره زړي یا لوي غونډلی منځ راځی .

د یوې غونډلی د ښتوالی لپاره کی اړ یا بنیادي توك ګردان شوی‌کړ دي . که هرڅومره ژبنی توکونه سره لږ ي شی اوکړ ونه لري . غونډله جوړ والای نشی اویه سرچپه ډول پخپله ګردان شوي‌کړ دیوې‌غونډلی لپاره کی اندازه ده لکه خوږم ــ ښنم ــ ځم اوداسی‌نور .

ځینی نادوده یا غیرعادي غونډلی چی کړ ېنی غورځی اویا هم غونډلی بلل کیږي هغه بلی غونډلی یا ندائیه غونډلی دي لکه : په پښتیانانا ! په ځلمیه ! دغه راز ــ هو ــ نه ــ بنه ښنگه ــ ولی اوداسی نور .. ښتو ځري هم نیمګړي یا اند ي کړ شوي‌غونډلی دي هغه هم دخبرو اترو اودیالوګ په ډ ول لکه چی یووایی : ته ناروغ یی ــ بل داسی‌ځواب وایی : هو ــ نه ــ ولی ــ ښنګه اوداسی نور .

اوس دیوي پوره ساده غونډلی ځو بیلګی وړ اندی‌کوو :

| | | |
|---|---|---|
| ۱ــ | ځلمی | راغــــی |
| | اینــــی | اینښونی |
| ۲ــ | د ځلمی وررور | راغــی |
| | اینی | اینښونی |
| ۳ــ | د ځلمی مشروررور | نن کابل ته راغی |
| | اینی | اینښونـــی |
| ٤ــ | د ځلمی یووررور | نـن له کندهار څخه کابل ته راغی |
| | اینــــی | اینښونــــی |
| ٥ــ | ځلمــــی | لیك‌کاږي |
| | اینی | اینښونــــی |
| ٦ــ | یوهلك | یو لیك‌کاږي |
| ۷ــ | یولیك | کښل کیږي |
| | اینــــی | اینښونــــی |

په لومړۍ غونډه له کی‌هم اینښی (مسندالیه) له یوه ساده کړند څخه جوړ وي او هم اینښونی له یوه ساده کړ څخه . په دویمه غونډه له‌کی اینښی له داسی کړند (وور ر) څخه جوړ دي چی (ځلمی) ورسره د تولنوم (مضاف‌الیه) او (د) ورسره‌د تولو ییکی په توګه اړوند (متعلق) بلل کیږي خو اینښونی لا همانسی یو یو ستوي‌کړ (راغی) دي . د دریمی غونډه لی د اینښی کړند (وورور) یو ستاینوم (مشر) ــ یو تولنوم (ځلمی) اویو تولوییکی (د) دخپلواړوندونو په توګه لهځان سره ملګري کړي او په اینښونی کی کړ (راغی) له ځان سره یو مهالی کړول (نن) اویو تونی کړول یاپه بله ژبه مفعول له (کابل ته). دخپلو اړوندونو په توګه ملګري‌کړي دي .

د څلورمی غونډه لی په اینښی کی کړند (وورور) له ځان سره‌یو پیژند (یو) د (حرف تعریف) ــ ځلمی د تولنوم او (د) د تو لو ییکی په توګه ملګري کړي او په اینښونی کی یی کړ (راغی) یو مهالی کړول (نن) او دوه تونی‌کړولونه (له‌کندهار څخه) او (کابل‌ته) په خپلی اړوندۍ کی لري . دلومړي تونی‌کړول په درو توکونو کی (کندهار) د سربل اؤ اوستربل (له ــ څخه) په ملتیا وتونپیر (مفعول منه‌حالت) موندلی دي اوپه دویم تونی کړول کی (کابل) د اوستربل (ته) په ملتیا ورتلونپیر (مفعول له‌حالت) .

سرله پنځمی څخه د پورتنیو څلورو غونډه لو پرخلاف د نالیزند (لازمی) کړ ځاي لیزند (متعدي) کړ نیسی اوپه دي توګه یی کړي (مفعول) ته هم اړتیا پیداشویده . د پنځمی په اینښی کی کړند (ځلمی) بیوسیتوي راغلی او په اینښونی کی یی‌کړ (کاري) له‌کړي (مفعول) سره ملګري شوي‌اوپه شپږمه کی اینښی د تولنوم (عام اسم) په توګه له هلك سره د پیژندنی اوتیاکی لپاره ورسره پیژند (یو) هم ملګري‌کړي دي او همداراز د اینښونی له کړي (لیك) سره هم یو پیژند . دلومړي پیژند پرځاي بل ډول پیژند (څوك‌یا کوم) او د دویم پیژند‌پرځاي بـــل پیژند (کوم) هم راتلاي شی په بله وینا (یوهلك یو لیك‌کاږي) (څوك یا کوم هلك‌کوم لیك‌کاږي) سره څومره بیز او څرنګیز (کمی او‌کیفی) توپیر نلري .

اوومه غونډله بیا دپنځمې او شپږمې غونډلې غونډې چاروال لیږندکړنه بلکې بېچار لیږندکړ لري په دې توګه یې کړي (لیک) له خپل پیژند (یو) سره ایښې جوړوي او (کښل کیږي) دیوه ترښتي کړ په توګه ایښوونې • دغه راز کړي (لیک) چې دکړندځاي نیسي او کړ وړیوري اړه (اسناد) پیداکوي • نوېږه دودیزه نوموونه یې (نائب فاعل) بولي • دادي دپوره څرګند تیاپاره دځو بیلګو غونډلو انځورلیک (ګراف) وړاندي کوو :

۱ـ نالیږنده غونډلـــه :




۲ـ چاروالـه لیږنده غونډ له :



۳ــ بیچاره لیزند غونډ لــــه :




دغونډ لی رغنده توکونــــــه :

پاس موپردوو برخو (اینبی او اینبونی) دغونډ لی ویشنه وکړه دلته غواړو په تولیز ډول یې تول رغنده توکونه (گروته) ترکتنی لاندي ونیسو او ډهغو دخومره والی لهمخی دغونډ لي جولیز (شکلی) ډولونه ونوموو. دغه توکونه تول آزاد یا خپلواك گړونه اولــه ناخپلواکو یا تړلیو گړونو څخه یواځی وبیکی را اخلی. البته تاړي د ازادو گړونو دنه جلا کیدونکو توکونو (اجزاوو) په توگه دغونډ لی سیده توکونه (عناصر) نه بلل کیزي په دي توگــه یی که ازاد توکونه او ړون موندلی ــ بیلبنــتی (اشتقاقی) او تړبنتی (ترکیبی) هم وي دغونډ له پوهی (نحوي) له پلوه بیاهم د شننی وړ نه دي بلکی هریو دغونډ لی یو یواځینی تــــــوك (جزء) یا توك (عنصر) او یا یوون (واحد) گنبــل کیزي لکه : خورم ــ خورو ــ خوړلــی ــ خوړونکی ــ خوړل ــ ورکوم ــ ورکوو ــ ورکړي ــ ورکوونکی ــ ورکول ... زمري کیدل ــ کــــول ــ لاسته راوړل او داس نور . د ساري په ډول (زه خپلو شاگردانو ته په درنه سترگه گورم).

غونډ له په نحوي ډول اته ټوکیزه بلل کیږي چې څلورېې (زه ــ ته ــ په ــ سترګه) ساده ټوکونه (ګړ ونه یا ویيونه) دي او څلورېې (خپلو ــ شاګردانو ــ درنه ــ ګورم ) داوړ ونی (تصریفی) تاړ و په دړلودلو سره اوړ ونی ټوکونه (ګړ ونه یا ویيونه) دي . یا (خلمی یو کتاب ترلاسه کړي دي) په غونډ له پوهیز ډول یو پنځه ټوکیزه غونډ له ده چې یې (خلمــــی ــ یو ــ کتاب ــ دي) ساده ټوکونه (ګړ ونه یا ویيونه) دي او (ترلاسه کړي) یو تړ ښتی ټوک یا ګړ او یا ویې . څکه له شننې سره یې اوسنی یواځینۍ مانا له منځه ځي او تړ ښتی چاج له لاسه ورکوي .

دغونډ لې توکونه په لاندې ډول ډلبندي کیږي :

۱ــ ازیا خپلواك توکونه چې ټول ازاد ګړ ونه را اخلي . نومونه (ځیزنومونه ــ ستاینومونه ــ شمیرنومونه ــ نومځري) ــ ګړ ونه (از ــ مرستیال یا ساده ــ بیلښتی ــ خواپرخوا ــ تړ ښتي) او کړ ولونه (ازاو نا از) دي .

۲ــ مرستیال توکونه : چې په دوي کې ناوړ یدونی ګړ ونه (ویکی) راځی لکه اړیکو بیکی ــ تړ وبیکي ــ سرېلونه ــ او ستر بلونه اوداسې نور .

۳ــ په دریمه ډله کې انګیو بیکی ــ پاروبیکی ــ بلن ویکی اوداسې نور راځــی لومړي ډ له (ازتوکونه یا خپلواك توکونه) دموضوع څرنګوالی ــ څومره والی ــ چاروالی (فعالیت) اوداسې نور جاجونه (مفهومونه) نوموي اویا ورته نغوته کوي یا په بله وینا هم ویيزه (لغوي) مانا ښندي هم پښوییزه دغه ډلــه ازو کړ ولونه پرته ټول او ړیدونی ګړ ونه را اخلــی .

دویمه ډ له (مرستیال توکونه دنوموني او نغوتنې پازه نه بلکی یواځی پښوییزه مانا اوچار لري . مرستیال ورته په دي وایی چې دغونډ لې دارو توکونو ــ غونډ ونو او غونډ لو ترمنځ اړیکی ټینګوي .

په دریمه ډ له (پاروبیکی ــ بلن ویکی ...) دنوموني پازه نلري او دبیلا بیلو ځانګړ و ننګیرنو څرګندونه کوي پاروبیکی لکه دخوښی (واخ ــ وخ ــ اوخ ...) یا

۱ــ یو سړی ــ راغی یا : یوه سړي ــ ډوډۍ وخوړه ·

۲ــ یوغټ سړی ــ راغی یا : یوه غټ سړي ــ ډوډۍ وخوړه ·

۳ــ د ښځې مشرورور ــ ولاړ یا : د ښځې مشرورور ــ وینا وکړه ·

٤ــ د ښځې دوه ورونه ــ ولاړل یا : د ښځې دوو ورونو ــ ویناوي وکړې

٥ــ د ښځې دوه مشران ورونه ــ ولاړل یا : د ښځې دوومشرانو ورونو ــ ویناوي وکړې ·

٦ــ زما یو کشرورور ــ کورته ولاړ یا : زما یوه کشرورور ــ واده وکړ ·

په اینبونی کی کړ(آریا مرستیال) ترنورو توکونو وروسته راځی که دغه کړله دووغبرګو (آر او ناآر) کړ څخه جوړ وي نو آر تر مخه او نا آر(مرستیال) وروستی بیخی پای ته راځی · ترکړ (اریا مرستیال) دمخه کړی (که کړ چاروال لیږندوی) او کړی بیا له خپلو اړوندونو وروسته ځای نیسی · کړول (که چیریوي) زیاتره ترکړي دمخه راځی خو که دوه کړولونه په یوه اینبونی کی راغلی وي او یو مهالی اوبل تونی یا بل ډول وي نوزیاتره مهالی له تونی یابل کړول وکړي څخه مخکی کیږي · تونی یا بل کړول بیا کیدای شی ترکړي وروسته ځای ونیسی لکه په دي لاندي غونډ لو کی :

۱ــ زمری ــ نن ازموینه ورکړه ·

۲ــ زمری ــ (نن) (په بریالیتوب سره) ازموینه ورکړه ·

۳ــ زمری ــ (نن) ( له خپل ورور سره) (له کندهاره) (کابل ته) راغی ·

په پاسنیو غونډ لو کی (نن) مهالی کړول دي (په بریالیتوب سره) او (له خپل ورورسره) څرګندنی او (له کندهاره) او(کابل ته) تونی کړولونه دي · همداراز (ازموینه) او(خپله ازموینه) کړي(مفعولونه) بلل کیږي ·

دغونډ لی بشپړ اند توکونه :

سربیره

یوه غونډ له پربورتنیو نومول شویو توکونو ځینی بشپړ اند (متمم) توکونه هم لري لکه اخج ــ اهنګ ــ بیلتون اوبیوستون اودغونډ لو دپای غاړه (لحن) · دغزپوهی له مخــــ

دغه ځانګړ تیاوي (خصوصیات) دویمنی اوازونه (فونیمونه) بلل کیږي چې د لومړیو یا اروااوازونو

(لکه ا ــ ب ــ پ ــ ت ــ ټ ... ي ) غونډې دګړ هار په بهیر کې دپرله پسې والی یا تسلسل

(لینیاًل )لونه نلري او دغونډ له پوهی له مخی هماغسی مانیز او چاریز (تعاملی یا فنکشنال)

نقش او اغیز لري لکه ارتو کونه (ګړ ونه) ځکه دغونډ لو مانیز او پښوییز ډولونه سره توپیروي .

نوله دي کبله خج ــ اهنګ ــ بیلتون او پیوستون اودغونډ لو دپاي غاړ ه (لحن ) دغونډ لی

بشپړ اند توکونه بلل کیږي .

۱ــ اهنـــــــګ :

دغونډ لو اهنګ څلور ډوله دي : خبري اهنګ ــ پوښتنی اهنګ ــ هیښنی اوېلنی

(تعجبی اوندایی) اهنګ او امري اهنګ . په بله وینا خبري ــ پوښتنی ــ هیښنی اوېلنی

اوامري غونډ لی سره دخپلو ځانګړ و اهنګنــو په مرسته توپیریږي .(۱)

۱ــ دخبري غونډ لی اهنګ اوارپیل کیږي اوبیا غورځیدلی پروت پاي ته رسی

لکــه : زمري ــ راغی .



۲ــ دپوښتنی غونډ لی اهنګ ټیټ پیل مومی او بیا نیغ شوي پروت پاي ته رسی

لکــــه : زمري ــ راغی ؟



که په سرکی یی پوښتنو مخري یا پوښتوییکی راشی بیانو اهنګ په سرکی لوړیږي .

۳ــ دهیښنی ــ بلنی ــ ګومانی اود اسی نورو غونډ لو اهنګ کابو یوراز راځــــی

اوهغه داچی ټیټ پیلیږي بیا پورته ځی اوپه پاي کی ریب پاي ته رسیږي لکه :

زمري ــ راغـــی !



۲ــ خـــج :

لکه څنګه چی په غږ پوهه کی ورته نغوته وشوه . غونډ له یېز خج هماغه پیاوړي خج

دي چې دنورو توکونو په ترخ کی یی پرېوه راشی اوهماغه خجن توک ترنورو توکونو زیات موخن

---

۱ــ دلته له پوهاند الهام څخه الهام اخیست شوي ( روش جدید د رتحقیق د ستور

زبان دري ۱٤۲ ــ ۱٤٤ مخونه ــ همداراز د زبار دژپپوهنی بنسټونه هم دپاملرنی وړ دي .

(مطلوب ) ښيي ٠ نور ټوکونه یاهيڅ خج نلري اويا د هماغه يوه پياوړي خج تر اغيز لاندي کمزوري ويل کيږي ٠ په دي ډول د ري رازه غونډ له ييز خجونه سره توپيرو و ٠ پياوړي — لز پياوړي او کمزوري لکه د اولمير په دي سند ره کی ( ستاد سترګو بلا واخلم بيا دي سترګی ولی سري دي ) پر( ولی ) پياوړي — پر(واخلم ) لز پياوړي او پر ( سترګو ) کمزوري خج اوريدل کيږي ٠

۳ـ بيلتون او پيوستـــــون :

بيلتون او پيوستون د ا مانا چی دغونډ و يا غونډ لو د پاي ويينه سره پيوست اوبی لارغه (بی‌مکثه ) وويل شی اويا سره ناپيوست په لارغه (مکث) ٠ په دي توګه که کله د هماغو يوراز غونډ و يا غونډ لو ترمنځ بيلتون پرپيوستون بدل شی اويا سرچپه ٠ نو هغه جاج او مانا يی سره نه توپيريږي چی د ويونکی موخه او مطلب وي ٠ داچی دغه بيلتو ن او پيوستون يواځی د نحوي يوونو (واحدونو ) ترمنځ نه بلکی دغږپوهيزو هغو ترمنځ هم نقش او اغيز لري نو د خج آهنګ اوغاړي (لحن) غونډ ي بيلتون او پيوستون له اره د ويمی اوازونه( فونيمونه ) دي ٠ بيلتون او پيوستون د ليکونکی په دي کرۍ (بيت ) کی ښه تراجوتيږي :

کړي که بخشش د وصل راز ياره — زړه سوزول پرما ملنګ ښـــــــــه دي ٠

دلته که(ز) له مخنی ويبی يا په بله وينا له مخنی اواز (الف ) سره پيوست وويل شـــی مانا يی دا ښی راځی چی (يه ياره !) که ماته (د وصل راز ) را بخشش کړي اوکه نه (ز ) له (ياره ) سره پتليزه وويل شی يا په بله ژبه د (الف ) او (ز ) ترمنځ بيلتون او — لارغه راوړل شی بيا د مانا ښندي چی (يه زياره) که ماته (د وصل بخشش )راکړي په د ي توګه که د مخنی مانا موخه وي ٠ په کار دي د (راز) او (ياره ) وييونو يا په بله وينا د (ز ) او (ي ) ترمنځ په وينګ (تلفظ ) کی لارغه او بيلتون او له بله پلوه د (الف ) او (ز) ترمنځ پيوستون راشـــی ٠ او که وروستی مانا موخه وينو په کار دي د (را ) او (زياره) يا په بله وينا د (الف )او(ز) ترمنځ لارغه اوبيلتون اوله بله پلوه د (ز ) او( ي ) ترمنځ پيوستون راشی ٠

اوکه وروستی مانا موخه وګڼو په کار دي د ( را ) او ( زیاره ) یا په بله وینا د ( الف ) او ( ز )

ترمنځ لاړغه او بیلتو او له بله پلوه د ( ز ) او ( ي ) ترمنځ پیوستون راشي ، په دي ډول

د لومړي نیم بیتي یا غونډ له دوه راز کاروو :

د لومړي مانا له مخي : کړي که بخشش د وصل راز — یاره !

د دویمي مانا له مخي : کړي که بخشش د وصل را — زیاره !

همدا رنګه د راډیو افغانستان د خبرلو څانګړ بي ځایه بیلتون او پیوستون په دي وروسته غونډلو

کي خوره مانیز بدلون پیښوي : د جنوبي افریقا صدر اعظم جان — فورسترو وبل — د نیپال پاچا

دیوا ذن — خپل هیواد ته ستون شو ، په دي توګه (جان ) د صدراعظم توك ګرځي نه د فورستر

او ( ذن ) د ( دیوا ) توك ګرځي نه یو جلاوي (کړ ول ) .لیکښي د نورو غونډي د همدا راز د ویښیو

توکونو (څپو — اهنګ — لحن بیلتون او پیوستون ۰۰۰۰ ) سمبولونه بلل کیږي ،

د اینبي او اینبوني سمون :

د اینبي او اینبوند ترمنځ همانه سمون مطلب دي چي د ګڼبي — نوزي او وګړي

له مخي د کړند یا کړي او کړ ترمنځ راځي ، د ګڼبي له پلوه سمون دا چي که کړند یو ګړي وي

نو کړ ورسره یو ګړي راځي او که کړند ډیر ګړي یا د ډیر ګړي پانډو ول (لکه جنس ) وي ، کړ

ورسره ډیر ګړي راځي د نوزي له پلوه دا چي که کړند ښځینه وي کړ ورسره ښځینه کارول کیږي

او که کړند نرینه وي کړ ورسره نرینه کارول کیږي او د وګړي له مخي سمون دا چي کړ باید له

هر یوه وګړي (لومړي — دویم — دریم ) سره سم وکارول شي نه دا سي چي د لومړي وګړي کړ

د دویم وګړي لپاره په کار واچول شي او دا سي نور ، لکه په ګرپوهه کي موچي ولیدل دغه د ود

(قاعده ) بید وني (استثناء ) لري لکه په چاروال لیزند تیرمهال کي چي کړ د کړند نه بلکي

د کړي (مفعول ) اړوند (تابع ) دي په بله ژبه د ګڼبي — نوزي او وګړي له مخي کړ له کړي سره

سمون خوري نه له کړند سره ، همدا راز دغه سمون په اوس مهال کي یوازي د ګڼبي او وګړي له

پلوه څه ناڅه رښتینوالي موي مګر د نوزي له پلوه هیڅ نه ، په دي وروسته غونډلو کي د اینبي

او اینبوني ترمنځ سمون له ټولو استثناګانو سره لیدلاي شو :

۱ـ نالیزند تیرمهال :

۱) زه —— راغلم

۲) ته —— راغلی

۳) دي —— راغی

۳) دا —— راغله

٤) موز —— راغلو

٥) تاس—— راغلاست

٦) دوي —— راغلل

٦) دوي —— راغلـس

۲ـ لیزند تیرمهال ( چاروال ) :

۱) ما —— خټکس وخوړ

ما —— خټکي وخوړل

ما —— هندوانـه وخوړه

ما —— هندوانـس وخوړي

۲) تا —— خټکـس وخوړ

تا —— خټکي وخوړل

تا —— هندوانـه وخوړه

تا —— هندوانـس وخوړي

او همداسی د دریم وګړي لپاره ۰

۳ـ لیزنـــد تیرمهال( بیچار ) :

۱) زه —— وخوړل شوم

۲) ته —— وخوړل شوي

۰۰۰۰۰ همداسی ترپایه ۰

۴ـ نالیزند اوسهال :

۱) زه ــــ ځم

۲) ته ــــ ځې

۳) دي ــــ راځي

۰۰۰۰۰۰ همداسې ترپایه ۰

۵ـ لیزنداوسمهال (چاروال) :

۱) زه ــــ ډوډۍ خورم

۲) ته ــــ ډوډۍ خورې

۳) دي ـ دا ــــ ډوډۍ خوري

۰۰۰۰۰۰ همداسې ترپایه ۰

۶ـ لیزنداوسمهال (بیچار) :

۱) زه ــــ خوړل کیــــږم

۲) ته ــــ خوړل کیږې

۳) دي ـ دا ــــ خوړل کیږي

۰۰۰۰۰۰ همداسې ترپایه ۰

نوموالہ او کړ واله غونډ لـــــه :

که دیوې غونډ لې په اینبونو کې دآریا مرستیالکړ (لکه خوړل ـ کیدل ـ شول) پرځای یواځې (دي) اویا ددغه مرستیالکړ نورې بڼې اوډولونه راشي ۰ هغه غونډ لــــه (نوموالہ) غونډ له یادل کیږي که نه کړ واله غونډ له. لکه زرین ـ روغ دي یا وـ یا : هلکان ـ ناروغه دي یا و ۰ زرینـــه ـ ناروغه ده یا وه یا : نجونې ـ ناروغې دي یا وې ۰

دغونډ لی مانیز ولرنـــه:

غونډ لـــی دکړ دودله مخی په خبري یا بیانیی اوناخبري یا انشایی او یاالتزامی

غونډ لو ویشل کیږي:

۱ـ خبـــــري:

۱ـ ببرك ـــــــ ولاړ

۲ـ ببرك ـــــــ تللی دی

۳ـ ببرك ـــــــ تللی و

٤ـ ببرك ـــــــ تـــه

٥ـ ببرك ـــــــ ځـــی

٦ـ ببرك ـــــــ به ولاړ شـــی

.... او داســـــی نور.

۲ـ ناخبـــــــري:

۱ـ ببرك ـــــــ ولاړ؟ (پوښتنی)

۲ـ ببرك ـــــــ ولاړ! (هیښنـــی)

۳ـ ببرك ـــــــ به تللی وي! (گومانی)

٤ـ (کاشکی) ببرك ـــــــ به تللی وای! (ارمانی)

٥ـ ببرك ـــــــ د ي تللی وای! (ټینگاري)

٦ـ (که) ببرك ـــــــ تللی وي (اړوتی)

۷ـ ببرکـه ـــــــ ځـه! (امري)

۸ـ ببرك ـــــــ به ولاړ شی (گمانی او ټینگاري)

...... او داسی نور.

دغونډ لی‌جولیز پولونه :

دجولی او شومره والی له مخی غونډ له یو ستوي‌وي یاغبرګه ــ یاګډه اوپاګډ لی ۰

۱ــ یوستوی‌غونډ له هغه رازغونډ له د ه چی له دووغونډ ونو ( اینس او اینسونی ) څخه جوړه وي لکه :

څلمی ـــــ ییوه کوي

پوغښتلی سړي ـــــ په څغاسته راغی

دکندهار انار ـــــ خوازه دي

بوره ـــــ نشتــــه

۰۰۰ اوداس نوري ۰ یوستوي غونډ له دنورو درو پولو پنسټ بلل کیږي ۰

۱) ارته یو ستوي‌غونډ له‌چی پی اینس له‌یوه ( کړند ) یا کړي او اینسونی له یوه (کړ ) ــ او پلیزند‌په ترڅ کی ــ له یوه (کړ ) څخه جوړوي اوددوله مخی ددغو درو واړو توکو(کړ ــ کړند ــ کړ) اړوند‌ونه له دوو توکسو څخه تیري ونکړي لکه :

زمرک ـــــ څــــي

زرک ـــــ اوبه څښـــي ۰

یوه نجلی ـــــ یو لیکی لولی ۰

یوه ښکلی نجلی ـــ یــــوپنډ لیکی لولی

زما یو ملګري ـــــ هیڅکله خپل کورنی کارنه هیروي

۲) ارته یو ستوي‌غونډ له چی په اینس یا اینسونی یا دواړو کی دکړ ــ کړند یاکړي یادرواړو اړوند‌ونه له دوودوو توکونو څخه تیري وکړي اوبه دي توګه پکـــــس زیات ارتوالی راشي لکه : دعراق دعربی جمهوریت رئیس‌حسن البکر ـــــ به بله میاشت د افغانستان دجمهوري دولت پایتخت مرکز کابل ته راشی ۰

یا : دافغانستان دجمهوري دولت یوه کلتوري پله ــ دشوروي اتحاد دپوهنو داکادمی په بلنه هغه هیوادته سفرکوي ۰۰۰ اوداس نور ۰

۲ـ غبرگغونډ لـــــه :

غبرگغونډ له هغه ده چې دیوه اینس او یوه اینوښی پرځای دوه دوه اینسـس اوایښونی ولري یاپه بله وینا که دیوې پوهونی او مطلب دبشپړ تیا یا دوو اړوندو مطلبو دڅرگندونی لپاره سره دوې غونډ لی په کوم اړیکوییکی یا لاژغه ( مکث ) غبرگی اوملگري شی ۰ یوه غبرگغونډ له منځ ته راوړي ۰ داړیکوییکو دډولونو له مخی سره ډول ډول غبرگغونډ لی توپیرولای شو دغبرگغونډ لی په دواړو بیلا بیلو غونډ لو کی یوه اره یا خپلواکه اوبله څرمه (فرعی) یـا بیواکه غونډ له بلل کیږي ۰ اره یا خپلواکه په دې مانا چی ار مطلب او موخه پکی څرگندیږي اوځانته په خپلوښود ریداې شی ۰ څرمـه یابیواکه په دې مانا چی ار مطلب اوموخه پکـی نه څرگندیږي اوځانته پخپلو ښو دریداې نشی په دې توگه په یوه غبرگغونډ له کی بیواکه یا څرمه له خپلواکی یااري سره دیوه مطلب په څرگندونه کی مرستیاله او بشپړوونکی اوسی ۰ داړیکویکو له مخی د غبرگغونډ لی ډولونه په لاندې توگه ښوول کیږي :

۱ـ تړ غبرگغونډ له : چی دواړه یوستوې غونډ لی پکی په یوه تړوییکی (او) یا لاژغی سره یو ځای شوي وي لکه :

زما زوې اووه کلن ( دې ) او لورمی شپږ کلنه ده ۰

یا : زما زوې لس کلن دې اوستا لور دولس کلنه ( ده ) ۰

۲ـ اړوتی غبرگغونډ له : چـی یی یوه ( زیاتره لومړ ی ) یوستوې غونډ له بیواکـه او بله ( زیاتره دویمه ) خپلواکه وي ۰ په دې تـوگه دلته بیواکه غونډ له آړ ( شرط ) بلل کیږي او خپلواکه اړوتی ، لکه :

که ته راشی ـ زه به راشم ۰

که وریځ سپینه شی ـ باران کیږي ۰

که شمال نه وي ـ ونه نه ښـــوري ۰

دکه په وړاندې داړوتن غونډ لی په سرکې د (نو )اړیکوییکی هم راتلاي شی لکه : که شمال نه وي ــ نو ونه نه ښوري .

۳ــ توسنی (علتی )غبرگغونډ له : چې یې دواړه یوستوي غونډ لی سره په یوه یاغبرگو توسنو ییکو( ځکه ــ ځکه چې ــ چې ــ داچې ــ په دي چې ــ نو ...) غبرگی شوي وي . په دي ډول خپلواکه توسنی (معلوله ) اوبیواکه توسن (علت )غونډ له نومیداي شی لکـــه :

زه راغلم ــ ځکه تابللی وم یا : زه راغلم ــ پـه دې چې تابللی وم .

تابللی وم ــ ځکه راغلم یا: تابللی وم ــ نو ځکه راغلم .

ځکه راغلم ــ چې تابللی وم یا :ځکه راغلم ــ په دي چې تابللی وم .

داچې تاوېلی وو ــ نوراغلم یا : څنگه چې تاویلی وو ــ نو ځکه راغلم ...

٤ــ څرگندنی (بیانـــی )غبرگغونډ له : چې دویمه مله غونډ له دلومړۍ هغـــی دزیاتی څرگندتیا لپاره وي او ډیوي پوښتنی ځواب وایی : ددغسی څرگندتیا دڅرنگوالی له مخی دالاندې کوچنی ډولونه دیادولو دي :

۱) موخنه یامراسی څرگندنی غبرگغونډ له : چې په خپلواکه غونډ له کی د راغلی مطلب یا پیښـــی موخه په بله څرمه غونډ له کي څرگنده شی لکه :

سنک ایران ته ولاړ ــ چې ځانته کار مزدوري پیداکړي .

زه راغلم چې تاووینم .....

۲) مهالی څرگندنی غبرگغونډ له : چې لومړۍ (بیواکه)غونډ له ددویمی (خپلواکی ) غونډ لی څرگندکړي چار اوپیښی مهال اووخت ټاکی لکه :

چې ته راغلی ــ زه به ولاړ شم یا : چې ته راغلی ــ نو زه به ولاړ شم

کله چې ته راغلی ــ زه به ولاړ شم یا : کله چې ته راغلی ــ نو زه به ولاړ شم

سم چې ماوریرانیست ــ پرهغی می سترگی ولگیدي .

زه به هله درشم ــ چې ته می وغواړي .

یا : زه به هله د رشم -- هرکله چې تا وغوښتم

هومره به دي مړ نکړم -- څو دي زنګ دمړي نکړم

هله به خبرشې -- چې تاروجې له ورشې !

هله به دي په یاد شي -- چې دي یو د بوال ته مخ بل ته دي شاشي !

٣) تونې څرګندونې غبرګغونډوله : چې څرمه غونډه له یې داري لپاره تون(ځاي )

وټاکي لکه : چیري دې ښه -- هلته دي شپه !

چې نه کار -- هلته څه کاریه ! چې دي نه کار -- هلته څه کار !

چې له کومې راغلی یې -- پرهماغه ځه !

چیري چې اوسې -- په خوي به د هغوي شې یا : چیري چې اوسې -- په خوي به

د هغوي اوسې !

یاد پرد یو ژبو په ېې ځایه پیښو لکه :

د هند جمهوررئیس شوروي ته ولاړ -- ( چیري ) چې له شوروي مشرانو سره خبري کوي

دلته ( چیري ) یو زیاتې توک دي · البته له ( چې ) سره ( کوي ) نه بلکې ( وکړي ) راځې ·

( تون ) د زیاتې څرګندتیا لپاره له (چې) سره (هلته ) هم ملګري کیداي شي لکه :

د هند جمهور رئیس شوروي ته ولاړ چې هلته له شوروي مشرانو سره خبري کوي ·

٤) وګړیزه څرګندنې غبرګغونډه له : چې په د واړو ملوغونډه لوکې راغلې کړندیاکړي

یو ( وګړي ) وي لکه :

څوک چې خوبکړي -- نرکښې به زیږوي ·

یا : د نورو ژبو په پیښو په نا سم ډول :

ځې · هغو خوارو ته جنت وګټو -- ( څوک ) چې له موره د وزخیان پیدا دي

دلته دا پایله اخیستلای شو چې ( څوک ) د ( چیري ) -- ( کوم ) -- ( څه ) --( کله ) او داسې نورو

څرګندنې اړیکویکو غونډي یواځې د هماغې څرمه غونډه لې په سرکې له ( چې ) سره راتلاي شي

چې تر اړي د مخه وې دغه توپیر په تیرو دواړو ساړو ( مثالو ) کې ښه ترا لیداي شو ·

۵) څیزواله څرګندنی غبرګغونډوله : چې په دوارو ملوغونډو لوکی راغلی کړندونه یا کړي یو (څیز ) وي لکه :

څه چې کري — هغه به ریبي

څه چې وي — هغه به وي

۶) کړولی (قیدي) څرګندنی غبرګغونډه له :چې ددوارو غونډو لوارېکو ییکس کړو لونه وي لکه :

اسري څه — ژوږاځه

یاددي لندوی دویمه برخه : پراویږ غرو دخدای نظر دي — پرسریې واوري — پولمن یې زیرګلونه

۷) پرتلیزه څرګندنی غبرګغونډوله : چې ددوارو ملوغونډو لواینس سره دارېکو ییکو په وسیله اندو ژل — پرتله یا همڅیر شوي وي لکه :

څنګه دیګ — هس تیپرایا : هس یې تیپر (کړپرېښوول شوی )

څنګه غر — هس یې کریوړي (کړ پرېښوول شوی )

یو یې ګټې — سل یې څټې

سل دي ومره — یونه دي مه مره

یا : سل دي ومره — د سلو سردي مه مره

سل پننګان سرخي— دیوي شمی ژړا سره

۸) اړپیچنه (متضاده) څرګندنی غبرګغونډوله : چې داري اوخرمی څرګندونی یا اینس سره اړ پیچ یابو والی (تضاد یا تقابل ) ولري لکه :

که څه هم بازار ایښتلی نه و — (خو) بیاهم بریالی شوم

سره له دې چې ناروغ وم — پوهنځی ته راغلم

یا :سره له دې چې ناروغ وم — خو بیاهم پوهنځی ته راغلم

یا د یویارتی یوستوي غونډ لی په بېـــه :

له ناروغی سره سره پوهنځی ته راغلم .

لهولسه وو ځــــه — له نرخه مه ووځــــه

که غر لوي دي — پرسرېی لاردہ

خپل خپل دي — پردي په ډیرو نارو خپل دي

د ښمن به دي وخندوي — دوست به دي وژړ وي

شمه که سوزیږي رڼـا هم لري (گوره په خندا کی ژړا هم لري )

۹) سرغاړ ي ( منصرفه ) څرگندنی غبرگغونډله : چی دویمه ( څرمه ) غونډ له یی دلومړ ی ( اري ) له څرگندونی څخه سرړنړ وي او نور زیات څه څرگند کړ ي لکه :

ځلمی گرم نه دي — بلکی زمري گرم دي

یا : ځلمی گرم نه دي — چی زمري گرم دي

۱۰) بشپړ انده څرگندنی غبرگغونډله : چی دویمه ( څرمه ) یی د دویمی ( اري ) دجاج ( مفهوم ) په بشپړ و لو یا پراخولو کی مرستیاله اوسی لکه :

خوشال خټـک نه یوازی شاعرو — چی تورزن هم و یا : بلکی تورزن هم و .

یا : خوشال خټک یوازی شاعر نه و — چی تورزن هم و یا : بلکی تورزن هم و .

یا : خوشال خټک لوي شاعرو — چی لا اتل هم و .

دلته گورو چی ( نه یوازی ) د ( چی هم ) یا ( چی لا هم ) او یا ( بلکی هم ) په ملگرتیا د دواړ و غونډ لو اړیکی ټینگوي یا په بله وینا ( نه یوازی ) او ( چی هم ) یا ( نه یوازی ) او ( چی لا هم ) یا ( نه یوازی ) او ( بلکی هم ) د دواړ و ملوغونډ لو تر منځ د بشپړ تیا اړیکی ځرگندوي .

همدومره خبره ده چی که د پورویی ( بلکه یا بلکی ) له کارونی څخه ډ ډه وشی نو د پتـــی ( جبران ) لپاره یی په هماغه څرمه غونډ له کی د اینبی پرار توک باندي یو پیاوړ ي خج راوړ ل په کار دي چی له همدغه خج سره اهنگ هم پتلیز ( جوخت ) لوړ ولاړ شی .

۲ـ ګډه غونډه لــــه :

ګډه غونډه له هغې ته وایي چې په هغه کې له دوو نه زیاتې غونډې لې پرله پسې راغلې وي او څرګندونې یې سره یو له بله کوم ډول اړیکې او اړونده ي ولري ۰ او داچـــې هماغه یوه یوازینی مطلب د بېلا بېلو ملو غونډو له مخې په بېلا بېل ډول څرګندیدنه موندلی وي ۰ نوزیاتره یې یوه غونډه له خپلواکه یا اره وي او نوري تولې ملې ورسره بیواکه یا څرمه وي په ګړتي ( محاوروي ) پښتو کې ګډې غونډې لې زیاتره له دوو غبرګغونډو څخه جوړې وي چې په دې ډول په دواړو یو ځای شوو غبرګغونډو کې دارو او څرمو غونډو شمیر یو برابر وي لکه په دې لنډۍ کې :

ښه دي چې سترګی دې ورې دي ـــ که چیرې غنم وای خوړلای به دې وه

یاري دکوڅې زه د تیرا یـــــم ـــ خدایه کوڅې وران کړي چې جوړه تیراله ځمه

په لومړۍ لنډۍ کې لومړۍ برخه (مسره) یوه غبرګغونډه له ده چې اره غونډه له یکې ډېرخــه او څرمه وریسې ده ۰ دویمه برخه (مسره) یوه بله غبرګغونډه له ده چې څرمه غونډه له له اري غونډه لې ترمخه راغلې ده ۰ داچې په لومړۍ مسره کې دویمه ( څرمه ) غونډه له په څرګندنې ویکــې ( چې ) پیل شوې نو تړله لومړي مسره یوه څرګندنې غبرګغونډه له بلل کیږي او داچې په دویمه مسره کې لومړي ( څرمه )غونډه له په اړوییکو( که چیري ) پیل شوې نو تړله دویمه مسره یوه اړوتې غبرګغونډه له ده ۰ دواړې مسرې (غبرګغونډه لې ) سره بیا په یوه تومنې اړیکي ـــ چې په لارغه څرګندیږي ـــ یوه ګډه غونډه له جوړوي ۰ نو له دې پلوه زموږ یامنې لومړي لنډۍ یوه تومنې ګډه غونډه له ده چې یې دغږیو غونډه لو شمیر څلوروته رسیږي او لومړۍ یې ( ښه دي ) اره غونډه له بلل کیږي او که دغې لنډۍ ته د دوو غبرګغونډه لو په سترګه وګورو نو لومړۍ غبرګغونډه له (لومړۍ مسره) اره او دویمه غبرګغونډه له (دویمه مسره) څرمه ده ۰ د دویمې غبرګغونډه لې بیا دویمه ملهغونډه له (خوړلای به دي وه) اره یا اړوتې او لومړۍ هغه یې ( که چیري غنم وای ) څرمه ( اړ ) بلل کیږي ۰

او دا هم د لومړۍ لنډۍ (ګډې غونډلې) لنبتيليک (جدول):

۰۰۰ | اينبوني اړيکوييکی اينبی | اينبوني لارغـه ۰۰۰ | اينبوني اړيکوييکی اينبی | اينبوني

له پټ اينبی سره اره — خرمـه — له پټ اينبی سره خرمـه — اره

لارغه

لومړۍ څرګندنی غبرګغونډله — دويمه اړوتی غبرګغونډلـه

توسنی ګډه غونډلـه

همدا راز دويمه لنډۍ ديوې ګډې غونډلې په توګه جوتولای شو او هغه داچې دا هم يوه توسنی ګډه غونډله ده مګر په همدومره توپير چې دلته توسنی غبرګ غونډه له تړلی (تړ غبرګغونډلې) دمخه شوې ده. اوبل داچې تر ټولو وروستی غونډه له يی اره ده او په دې توګه ټوله دويمه غبرګغونډله (مسره) د لومړۍ غبرګغونډلې (مسرې) په وړاندې اره بلل کيږي په دې ګډه غونډله له (لنډۍ) کی د لومړي ملي غونډلې (يارمی ــ د کوټ) اينبوني د (د) په غورځونه چې يوه شعري اړتياده نيمګړي دي. دغه راز د څلورمی (اري) ــ اينبی خپلواکه جوله نلري او داچې د لومړۍ غبرګغونډلې د واړي ملې سره په يوې لارغی تړل شوي يا عطف شوي دي نو يوه تړ غبرګغونډله بلل کيږي.

دا هم د دغې دويمی ګډې غونډلې (لنډۍ) لنبتيليک:

اينبی | اينبوني (بی کړه) لارغه اينبی | اينبوني لارغـه اينبی | اينبوني اړيکوييکی ۰۰۰ | اينبوني

خرمـه — خرمه — خرمـه — يمی اينبی اره

لارغه

لومړۍ خرمه تړ (عطف) غبرګغونډله — دويمه اره توسنی غبرګغونډلـه

توسنی ګډه غونډلـه

يادښت: پر توسنی ګډې غونډلې سربيره نوري راز راز ګډې غونډلې هم پيداکيدای شي تشبيهی لکه د ښکارندوي په دې کړۍ کی:

هر يلو د ګلو وزم دي لونلـی ـــ ته واراغله له ختـه کاروانـونـه

یا د حمید دغه لنډۍ :

سینه می دیګ زړګی می غوښی ــ اوښکی اوبه دي بیلتون اوریس کوینــــه

٤ــ ګډ لی (مختلطه) غونډ له :

ګډ لی غونډ له هغه ده چی دیوي یوستوي غونډ لی په منځ کی یوه یا زیاتی خرمه غونډ لی ورننوتی وي . دغه راز خرمه غونډ لو ته منځپیښی (معترضه) غونډ لی ویل کیږي .
جوړښت یې داچی داري غونډ لی تر اینی ( مسندالیه ) یا د هغه ترکومی برخی وروستــه د هماغه اینی یا برخی په اړیکی (ارتباط) یوه یا زیاتی غونډ لی په خرمه ډول راشی او بیا د اري غونډ لی پاتی برخه ترټولو پاي ته راووځی . په ګړنی پښتو کی ګډ لی غونډ لـــی ډیري لږي کارول کیږي او هغه هم په دومره پیچلی بڼـه نه . داماناچی نه اره غونډ له پکی دومره ارته وي اونه پکی منځپیښی تریوي زیاتی وي او هغه یوه هم دومره ارته نه وي که نه په غبرګو او ګـډ و غونډ لو اړ ول کیږي . دلته لومړي ګړنی اوبیا له لیکنی پښتو څخه دګډ لو غونډ لو بیلګی را اخلو :

۱) زه چی کورته ځم ــ رخصت اخلم .

۲) ځلمی چی پرون راغلی و ــ ما ونه لید .

۳) ما پروفیسور مورګن سیترنې ــ چی د اوروستی ځل کابل ته راغلی و ــ ونه لید

یا د غبرګی غونډ لی په ډول : ما د اوروستی ځل پروفیسور مورګن سیتــرنې ونه لید ــ چی کابل ته راغلـــــی و .

٤) خوشال خټك ــ پخوا تردې چی په ګوالیارکی بندي شی ــ له اورنګ زیبسره په داسی میړ انه ــ چی ساري یې نه درلود ــ جنګ وکړ .

د ا یوه د وه اړخیزه ګډ لی غونډ له ده په دي توګه چی د لومړ ی اري غونډ لی (خوشا ل خټك له اورنګ زیب سره په میړ انه جنګ وکړ ) دوه منځپیښی غونډ لی راغلی دي چی لومړ ی یې ( په ګوالیار کی بندي شی ) د اینی (خوشال خټك ) په ګوالیارکی بندي کید ل څرګندوي او دویمه یې

( ساريږي نه درلود ) د ايښونې (جنګ وکړ ) ديوه کړ ول (په ميړانه) څرګندوي او بياوړي کوي ۰

(پښواتري — چې ) او( داس — چې ) د دروواړو ملوغونډلو ترمنځ داړيکو ييکو دند ه

پرځاي کوي لومړي زماني اړيکي او دويم څرنګيز اړيکي ۰

دلته وينو چې داړي غونډ لي ايښي (خوشال خټک ) له خپل ايښونې (جنګ وکړ ) يوناد ود ه

لرېوالي لري نو په دي لاندي ډول دغه لرېوالي له منځه وړلاي شو :

خوشال خټک — پښواتردې چې په ګواليارکې بنديشي — له اورنګ زيب سره

په داس ميړانه جنګ وکړ — چې ساري يې نه درلود ۰

د نننۍ کاسري نړۍ په غونډنو او اغېزو سره دغه راز غونډ لي په (( ليکنې )) پښتو

کې مخ پرزياتيدو او وپېچلې کيدو دي لکه :

۵) ديونان نوميالي فيلسوف اپلاتون — چې په اسلامي نړۍ کې دلوي نامه

خاوند شو — دلويديزې نړۍ لومړي پوهاند دي — چې دژبې دبنسټ او څرنګوالي په باب يې

فلسفي څيړنه کړيده — اوله دي لامله دلويديزې نړۍ دژبپوهنې پرانيستونې اود پرله غښتي

ګرامر برسيروني ګڼل شويدي ۰

٦) ديونان ستري جنګي بوللې يا حماسې (( ايلياد او اوديسې )) چې سپيڅلې

ګڼل کيدي په خورا لرغونو زمانو کې په داسې يوه ژبه او سبک کښل شوي وې چې کابو نابومه

(نامانوسه) شوي ۰ ( الهام : وږمه — ٦ ګڼه ۱۳۵۱ ) ۰

په پنځمه ګډلي غونډ له کې يواځې (ديونان نوميالي فيلسوف اپلاتــــــــــــــون

ــــــــــــــــــــه اسلامي نړۍ کې دلوي نامه خاوند شو — دلويديزي

نړۍ لومړي پوهاند دي ) رښتيني ګډلي غونډ له جوړه کړي — ځکه ديوي اړي ترمنځ يوي

منځپيښې غونډ لې ځاي نيولې دي — او وريسې نوري دوي ورسره په څرګندنې اړتوسنــــــې

بڼـه د زياتې څرګندونې لپاره ملګري شوي دي ۰

## گړنـــــــس یا اصطلاحـــــات (IDEOMS)

په‌غونډه له پوهه کی موتر او سه دوینا بشپړ یوونونه ( واحدونه ) یاپه بله ژبـــه غونډه لی وخیړلی اوپه ترڅ کی مو واړه واړه وپی غونډونه‌یا لغوي گروپونه ( فقري ) چی دگړنو (ایدیمونو) په‌نامه بلل کیږي •

پیژندون ( تعریـــــف ) :

یوه گړنه یوداسی وپی غونډه دي‌چی دراز راز مانا لرونکو ( دوویاډیرو ) ویـــو اویپکو څخه منځ ته راغلی وي اوپه‌ژبه کی یو نا اټکل کیدونکی لرغونتوب لري • یوه گړنه تل په‌جولیزډول یوناشنونی او ټینګ یووالی نه وي خوپه مانیزډول بوناشنونی غونډه ( مجموع ) گڼهل کیږي • په بله وینا یوه گړنه دداسی وییوغونډه دي چی په یوه غونډه له بیز یاپه بله وینا غونډولپوهیز( نحوي) چاپیریال کی ځانته بیلا بیله جولیزه‌خپلواکی ساتلای شی • دساري په ډول له هر راز اوښتی راوښتی سره مخامخیداي شی خوپه گډه چی کومه یوه بواخیني مانا منځ ته راوړي نه‌شنل کیدونکی مانا بلل کیږي دغسی یوه منځ ته راغلی گډه مانا کله داسی وي چی دټوکونو( اجزاوو )له بیلا بیلو مانا وو سره څه ناڅه ورته والی اواړیکی لري اودشنلو ( تجزیه کیدلو) پروخت‌ین گډه‌مانا کورته‌ـه له منځه نه ځی — دچاخبره یو څرک هومره‌ین لالگیږي لکه برخه اخیستل — سربرځنهی کیدل مقصد ته رسیدل — وروسته پاتیدل خوله پرخوله کیدل — پرمخ تلل — لاسته راوړل یاراوستل — له منځه وړل ••• اونور •

په دویم ډول گړنوکی گډه مانا داسی وي‌چی دبیلا بیلو ټوکونو ماناوې یی ښکارندوي نه شی‌کولاي اوله ټوټـه ټوټه کیدو سره هر ټوک‌خپلی گونی اړي مانا ته ورگرځی کټ‌مټ لکه دیوه کیمیایی ترکیب ټوکونه ( دسـاري په ډول هایدروجن او اکسیجن چی یوپی‌هم ځانته دخپل ترکیب (( اوبو )) ښکارندوي نه‌شی کولاي ) بیلگی یی لکه : غوږ ربول — زړه مړیدل — زړه خوړل زړه ماتیدل — زړه پخیدل— سپینی ښوییدل — ښتیدل یا غوټه کیدل — پـزي ته رسیدل سترگی رپیدل — لاس ترزنی‌کیناستل — لاس پرسرکیدل — لاس اخیستل اوداسی‌نوري کنایی او مجازي مانا ښندونکی‌گړنی •

دریم – هغه گړنی دي چې دمتلو او بولنو (مقولو) په ډول وي یا په بله وینا یوه غوره وینا وجیزه ډوله یا مقوله ډوله وینا وي او یا متلونه وي د امانا چې کومې کیس ته گوته نیس او هره یوه دگړها ر په بهرکی دیوه ناشنونکی ویی غونډ (لغوي گروپ) په توگه لکه یوه گړنه کارول کیږي کټ مټ د شاعرانه ارسال المثل غوندي لکه : دگبرجام نسکور دي – پلانی او بیستانی سره نوک اواوري دي – پلانی او بیستانی دیوې سوړي ماران دي یا دیوي باغچې گلان دي – په یوه گل نه پسرلی کیږي – داهم په انارو – خوند یې باران وړي دي – دکوهی ختــه پر کوهی لگی – وروري خوري به کړو حساب ترمنځه – یوه بلابلی ته وایې چې بو – بنه بنه د ي بدبد دي – خپل عمل د لاري مل – دجولامنډ ه ترموزي پوري وي – لري ځه – ژړراځـــــــــــه مه کوه پرچا چې رابه شی پرتا – لاس چې مات شی دغاړي بارشی یا غاړي ته ورځی – دچا پرتوگابن تنستیدل (خجالت کیدل) – پرپچه سپړیدل او کشمیر لیدل – لورپه لوټه تیره کول – اویه له ورخه تیریدل – اویه په ډ انگ بیلول – چې په نازلوییږي په زبار زړیږي ۰ ( لکه پدي کړي کــــس : چې په ناز لوي شی په زبار ژړیږي – زه په زبار لوي شوم په ناز ژړیـــږم

اود اسی نور ۰ له هسی عادي بولنو اومتلونو سره د دغه رازگړ نوتوپیر همدومره دي چـــې دلته بولنی او متلونه په جلا او خپلواک ډول دوینا له بهیره بهر – دیوې کړي یاشوي وینا د تینگار پخلي او جوتتیا لپاره په خرمه او سرباري (اضافی) ډول نه بلکې پخپله د اري وینا یا یوه وینا ییز یوون (غونډ لی) دیوه نه جلا کیدونکی توک اوبرخې په توگه کارول کیږي له دي کبله د داسې تضمین شوي یا استخدا مشوي متل یا بولنی ار بنـه تل خوندي نه پاتیږي ۰ (لکه په پاسنی شعرکی) خوپه هرډول دیوې گړنی غوندي دوینا یا غونډ لی دننه دمانـــــا او جولی له مخې بونه شنل کیدونکی ویی غونډ اوبرخه جوړ وي لکه بخرزي – لاس ترزنی کیناست په دي غونډ له کې (لاس ترزنی کیناست) گړنیز غونډ (کل) دي چې دیوي غونډ لی اپښونی یې جوړ کړي دي ۰ نورساري (مثالونه) یې لکه :

د رخو ــ گوته پرغاښ ونیوله

ځلمی ــ اوبه په ډانگ بیلوي

ځلمی ــ له زانګونه کتوري غواړي

یا دیوه غونډ (اینښی یا اینښونی) یوه برخه جوړوي لکه :

تور ــ (اوبه په ډانگ بیلول) غواړي •

اویا دواړه غونډه یا په بله وینا یو متل ټوله غونډ له جوړوي لکه :

نوك او اوري ــ سره نه بیلیږي •

د پښو ییز چار له مخی دوه رازه ګړنی سره تویریږي ښو موالهګړنه لکه دبوډۍ ټال (قوس قزح) یا دګیدړ واده (افتاب باران) دویمه کړواله غونډ له لکه غوږ ږنول ــ په ډنډ کی خوله کیدل • په دي توګه یوه ښوموالهګړنه کیداي شي دکړ په ملګرتیا کړواله شي لکه لاس ترزنی کیدل اوداسی نور •

غونډ له پوهیزه (نحوي) شننه یا تجزیه :

د دي لپاره چی دغونډ له پوهیزو یوونښو (غونډ لو او غونډونو) پرمانیزو اوجولیزو جوړښتونو، او ډون اوخپلمنځی اړیکو مو ښه ترا رڼا اچولی وي ، دلته غواړو ځینی بیلګی یی ترشننی (تجزیی) اوسپړنی (تشریح) لاندي ونیسو • په دي ترځ کی به راته داهم په ښه توګه څرګنده شي چی دغه راز شننه له غږپوهیزي اوګړ پوهیزي له شننو سره څه توپیرلري •

۱ ــ زما ورور نن له کندهار څخه کابل ته راغی

داغونډ له وینو چی له نهو کوچنیو ټوکونو (زما ــ ورور ــ نن ــ له ــ کندهار ــ څخه ــ کابل ــ ته ــ راغی) څخه جوړه ده او دغونډ له پوهی له پلوه تر دغی زیاته نه شنل کیږي • که څه هم ځینی ټوکونه لکه (زما) ساده ویی نه بلل کیږي او پردوو ټوکونو یاټوکونو ټوټی کیږي مګر دغه راز ټوټه کیدنه یاشننه په ګړ پوهی پوري اړه لري نه په غونډ له پوهی پوري اوداسی نور • دلته یوازی په نهو ټوکونو شننه ــ دهغوي اوډون اوخپل منځی اړیکی ښو ول د غونډ له پوهی وینه ده • د دي ټوکونو په ډله کی ځینی بیاداسی دي چی دځینواړیکو له مخی سره غونډ غونډ یاجوړه جوړه کیداي شي لکـــه :

زماورور ـــ نن ـــ له کندهار څخه ـــ کابل ته ـــ راغی ۰

دلته بیا گورو چې په دغو پنځو غونډونو (کړند ـــ کړول ـــ کړول ـــ کړول ـــ کړ ) کې ځینی سره دبل ډول اړیکو له مخې پردوو ستروغونډونو یا برخو ډله ډله کیږي چې یوي برخی ته کړوال غونډ یا اینس (مسند الیه) اوبلی ته نوموال غونډ یا اینسونی (مسند) وایی لکه :

زماورور ـــ نن له کندهار څخه کابل ته راغـــــــی

داوډون له پلوه گورو چې لومړي نوموال غونډ راغلی اوبیا کړوال غونډ ۰ په نوموال کې د دپښتو غونډ له پوهی له دود اودوړ (قاعده اوقانون) سره سم لومړي تولنومځري (زما ) اوبیایې اړوند ځیز نوم( ورور) اوپه کړوال غونډ کې لومړي دکړ اړوند توکونه اوبیا پخپله کړ راغلی دي ۰

داچې غونډ له خبري په نوا هنگ یې اوارپیل کیږي او وروورو کښته لوېدلی پاي ته رسیږي ۰ تولهغونډ لهیو پیاوړي خج لري چې ویونکی یې لهخپلی موخی سره سم پرېوه ویی باندې راوړي دامانا :پرهرویی اوڅپـه چې ویونکی ورته زیات ارزښت ورکوي که نه پهعادي او منطقی ډول یې پولوستونکی پرکابل اوبیا د (بل ) پرڅپه راوړي له دي کبله موږ یوغونډ لهبیزخج ردوه ډولهپیژنو یوعادي یا منطقی خج لکهپر(کابل ) اوبل ځانگړي یا فوق العاده خج چې ویونکی یې دیوې ځانی خوښی یا فوق العاده موخی له مخې پرېوه بلکوم ویی یاڅپه راځی ۰ دساري په ډول که دویونکی موخه( زما ) ارزښت او اوچتوالی ویـنو پر( زما ) باندې زوراچوي بیانو دویونکی موخه داسی پوهیدل کیږي چې دبل چاورورپی نه بلکی خپل یې مطلب دي اوکه پر(ورور )خج راوړي دامانا تریاخلو چې ویونکی له نورو اړوند وکسانو (خپلوانو یاملگرو) څخه خپل (ورور )جلا کول اونومیرل (مشخصول )غواړي اوداسی پرنورو پاتی ویونو باندېدخج راوړل درواخله ۰

کوم اړیکی چې په دغه غونډ له کې داینس او اینسونی ترمنځ لیدل کیږي هغـه یې سره دوگړي نوزي اوگڼـی له مخې برابرښت او سمښت دي ۰ په بله وینا (زماورور) چې یو اینس دي داینسونی له ارتوك( راغی ) سره دپورتیو دړواړخوله مخې سمون لري داسی نه لکـــــــه

د وګړي له پلوه ( راغلم یا راغلی ) ویل شي یا د نوزي له پلوه ( راغله ) او یا د ګڼې له پلوه ( راغلل )

نامسیم وویل شي او داسې چې د تېرمهال نالېږدنده کړه د درېیم وګړي کې دغه درې ارخیزه سوون

یو ډول دی ، دا چې نن سبا د پرمختللي کولتوري ژبو په ډېرو د نمانځنې له کبله د یوګړي لپاره

د ډېر ګړي کړ اونومځوري کارول کېږي ( لکه زرک زمرک ته وایي (( تاسې له کندهاره کله

راغلاست ) ) یو بشپړ پېژند دود نه بلکې تولنیزه دود بلل کېږي ، المانیان دغه راز نمانځنه

په یوه بل ډول څرګندوي او هغه دا چې د مخاطب یوګړي وګړي لپاره د درېیم د ډېرګړي وګړي

( جمع غایب ) نومځوري کاروي او نور لویدیځیان د مخاطب یوګړي وګړي لپاره د همدغه مخاطب

وګړي د ډېرګړي نومځوري کاروي ، ختیځیان بیا زیاتره د درېیم د یوګړي د نمانځنې له کبله

د ډېرګړي کاروي لکه ستاسې پلار چېرې تللی و ، په کندهاري ګړدود کې د درېیم وګړي

ښځینه یوګړي تېرمهال نالېږدندګړ د ډېرګړي کارول کېږي ( وزمه راغلل ) چې تولنیزه یا

د رناوېزه پېښه ورته ویلای شو بلکې یوه سپېره پېژندګړ دوتي ځانګړتیا او له تولنیزي ( معیاري )

پښتو څخه یو سرغړاوی بلل کېږي ،

: زموږ تر څېړنې لاندې غونډه لې په ایښودنې ( نن له کندهار څخه کابل ته راغلی )

کې ( نن ) د ( راغلی ) مهال ټاکي په بله وینا یو مهالي کړول دی ، ( له کندهار څخه ) یو توني کړول

او ( کابل ته ) یو بل توني کړول بلل کېږي ، له بله پلوه ( نن ) یو ساده کړول دی او د انور د واړه

تر بښتی کړولونه یا په بله ژبه کړولي غونډونه ، په لومړي کړولي غونډه ( له کندهار څخه ) کې ( له )

سرېل او ( څخه ) اوسترېل ( کندهار ) وتون پېر ( ABLATIVE ) کې اچوي د همدغه

وتون پېر له کبله ( کندهار ) پر ( کندهاره ) اوړي خو په معیاري پښتو کې یو پایله ( ـه ) غوره کېږي ،

په دې توګه ( کندهار ) د سرېل او اوسترېل تر واکنې لاندې دی او د اتړل کړولي غونډه ( له کندهار

څخه ) ساړګړي بانډې واکمنې لري دې راز دا کړولونه ( نن ــ له کندهار څخه ــ کابل ته ) د کړ

اړوندونه دي او په یوه مهال کې پرکړ ( راغی ) واکمنان ،

د اړه‌ون له پلوه د غونډه لې ګرد توکونه پر خپل خپل ځای راغلي دي ، یوازې

( نن ) کولای شي تر ( له کندهار څخه ) وروسته ځای ونیسي ، له دې چې پکې بشپړېز او مانیز ونجون

پېښ شي ،

۲ـ خدایه ته په زړه کی اچوې دامینې ـــ چې په ښکارد ې مبتلاکړم ته مې وینې

(دخوشال خټك د باز نامې د سرییــــت) دغه بیت یوه ګډه غونډ له ده چې که (خدایه!)

جلا بانې (ندائیه) غونډ له ونه ګڼــو نو لومړي نیم بیتې یـې یوه یوستوي غونډ له ده او

دویم نیم بیتې یې د وه یوستوي یا په بله وینا یوه غبرګغونډ له ده خود مطلب له مخې لومړ ی

نیم بیتې غونډ له د دویم نیم بیتې له لومړ ی غونډ لې سره یو پړله غښتــې (منسجم) یــووالــې

یاغبرګغونډ له جوړ وي او د ریمه (ته مې وینې) وریوړې هـسې یوه سرباريغونډي غونډ له ملګري

شوي او د مخنیود ووغونډ لو د خرګندونې یو. بشپړ وونکی اوپخوونکی غونډ ې پایځوړ بلل کیږي .

د ادي لومړ ی یوستوي غونډ له په خپلورغند ه ټوکونو وېشو :

خدایه ـ ته ـ په ـ زړ ه ـ کی ـ اچوي ـ دا ـ مینې

دغه اته ټوکونه سره دخپنو ګرامري اړیکو له مخې د وروستیو څلورو غونډ ونو په بڼــه ډله ډله کوو :

خدایه ته ـ په زړ ه کی ـ اچوي ـ دامینـــې

لومړ ي کړ نده غونډ (فاعلی ګروپ) دی دویم کړ ولی ـ دریم کړ دي او څلورم کړ ي غونــډ

(مفعولی ګروپ) . د دغو غونډ ونو شمیر بیا د ووسترو غونډ ونو (ایښې او ایښونې) ته راټیټــوو :

خدایه ته ـــــــــ په زړ ه کی اچوي د امینې

د اوډ ون له پلوه په ایښونې کړ ي غونډ (دامینې) د شعري اړ تیا له کبله خپل ځاي پرې ایښې دي

که نه رښتینې ځاي یې هم د ایښونې په سرکی له کړ ول غونډ (په زړ ه کی) د مخه اوهم تري وروستــه

ټاکل کیږي . د اغونډ له که څه هم یوه خبري غونډ له ده اوپه کارور چې اهنګ یې ډیرتیـــت

پایته رسیدلی واي خود اچې شعري اړ تیا اوډ ون ویجاړ کړ ي او کړ ې غونډ (دامینې) ترکړ

(اچوي) وروستـــــه راغلی نو اهنګ تر ځوړ ید ووروسته یو ځل بیالوړ شوي پایته رسي . خج پر (ته) ـ

(اچوي) او (مینې) د رووار و وییو باندې راځي مګر وروستي د زیات پیاوړ توب له کبله دغونډ لی

یوا ځینې بیا ور ې خج بلل کیږي .

د اګرد ه‌غونــډله (یامسره) دمانا او موخی له مخی یو بیخی بشپړ یووالی نه برېښی بلکی (دا) د یوه اړیکوییکی په توګه دیوي بلی څرګندنی څرمه‌غونډ لی غوښتنه‌کوي له همدي کبله دابله څرګندنی غونډ له ورسره په بل مقابل اړیکوییکی یا څرګندنی ویکی (چی) پیل کیږي اودا اړیغونډ لی داړیکوییکی (دا) ځواب وایی چی څه ډول او کومه مینه ، په دي توګه دداړو غونډ لو له ملګرتیا منځ ته راغلی غونډ له یوه‌غبرګغونډ‌له بولو اوهغه بیا یو څرګندنی غبرګغونډله ، اودا هم دلومړي څرمه‌غونډ لی شننه:

چی — په — ښکار — دي — مبتلا — کـــړم

څوله څرمه‌غونډ له شپږ توکه لري ، لومړي توک (چی) یو څرګندنی اړیکوییکی دي ، دویــــم (په) یوتوسنبل دي چی بی اوستریله (سره) لوښنــه (الی) پاره ترسره کوي او (ښکار) ترخپل واك لاندي راولی اوپه لوښن پېر (الی حالت) کی یی اچوي ، (دي) د دویم یوګړي وګړي (مفرد مخاطب شخص) کمزوري‌نوموخري دي اوبیا یو کړ ند چی دګردي‌غونډ لی اینبس جوړوي ، (مبتلا) له (کړم) سره یو کړ وال غونډ یا په بله وینا یو ترښتن کړ رامنځ ته کوي ، د پورتنیو پښو ییزو اړیکو له پلوه ګرد څوکونه داسی غونډ غونډ کوو: چی — په ښکار — دي — مبتلا کړم ،

(چی) څولکه چی وویل شو له تیري غونډ لی سره دیوه څرګندنی اړیکی چارپرغاړه لري ، (په ښکار) یوتوسنی غونډ دي په بله وینا توسنی سربل (په) د (ښکار) ځیزنوم ته توسنپییر ورکړي او په دي توګه پرې واکمنی لري اوبیا داټول غونډ (په ښکار) په (مبتلا کړم) باندي خپله واکمنی چلوي‌کټ‌مټ لکه دیوه کړ ول غونډي ، (دي) دیوه یوګړي وګړي کمزوري وګړنوموخــــري (دمفرد مخاطب شخصی متصل ضمیر) په بڼــه دغونډ لی کړ ند ، یا په بله ژبـــــه (اینبس) جوړوي ، (مبتلا کړم) یو کړ غونډ یا ترښتی‌کړ دي چی له (په ښکار) سره دغونډ لی اینبونی‌جوړوي په دي ډول ګرد ه‌غونډ له پر دوو بنیادي برخو (اینبس او اینبونی) وشلاي شو:

دي ———— په ښکار مبتلا کړم

داوړو ن له مخې کومه نیمګړتیا نلري ، د ایښي ( دي ) له پښتو ییز دود سره سم د ایښوونې په منځ کې ورننوتې ځکه دیوه کمزوري نومځري په توګه یې په مرکې راتلل دود نه دي ، که ایښوونې منځنۍ برخه ( په بڼکار ) نه د رلود اي نو هرو مرو بیا د کړ غونډ په منځ کې ورننوته ( لکه مبتلا دې کړم ) ، او که د دغه تړښتې کړ ( مبتلا کړم ) پرځای کوم بوستوي کړ ( لکه وخوړم ) وای ، نو بیا ( دي ) بیخي پای ته وته ( لکه وخوړم دي ) بل ځیز چې په دې غونډ له کې د یاد ولو د یځه د کړي ( زه ) نه راوړل دي او پرځای یې یوازې په وګړیزي پایان ( م ) بسې راوړل دي چې له همدي کبله یې د دودیز پښتو پیوهان ( متصل ضمیر ) یا ( کمزوري متصل ضمیر ) او ( فعلي ضمیر ) بولي ،

د ویمه څرمه غونډ له ( ته ‌مې وینې ) د منځنۍ غبرګغونډ لی په بشپړ تیا کې نیوه برخه ته اخلي او یوازې یو تکراري بڼه لري نو که بیایې هم ماه وپولو ، زموږ غبرګغونډ له پرګاه ي غونډ لو اوړي چې د غونډ او شمېرې د روته ویس ، ورو چې اړه — د ویمه څرګندنې څرمه او وروستنی تړ ( عطف ) او بیا اړه غونډ ته بلل کیږي دغه وروستنی تړ ارغونډ له لومړي په اند ي د رو توکونو شنل کیږي :

ته — مې — وینې

( ته ) یو کړ نداو بیا د تړلي غونډ لی ( ایښي ) دي ، ( مې ) یو کړي دي او ( وینې ) د دویم یوګړي وګړي یومتري او معهال کړ دي ، د اچې کړي ( مې ) د کړ ( وینې ) له اړوند وڅخه ګڼل کیږي نو ایښي ( ته ) په وړاند ي په ګډه یو ایښوونې جوړوي یا په بله ژبه تړله غونډ له پردوو بنیادي برخو ویشو :

ته ———— مې وینې

۳ — د پښتو د فعلي اصطلاح ګانو واجدونه چې د جوړښت له مخې به په دغې مقالې کې په صنف بندیو وپشل شي مخې او د یاد ولو پر نښې یې د اد ي ( د دولت لوډین له لیکې څخه ) ، د اغونډ له له د وو ملو غونډ لو جوړه شوې ګډ لي غونډ له د ه ، په دې ډول چې د اړې غونډ لې د ایښې او ایښوونې ترمنځ یوه څرګندنې څرمه غونډ له اچول شوې ده ، څه چې د لته نابو ـــــه

(نامانوسه) اوناد ونده بریښی هغه داري غونډ لی بیا بیښی (تکرار) دي اودابیاپیښــــی اوناد ودي هله را ښکاره شي، چې منځپیښی تري وایستل شي لکه: دپښتو دفعلی اصطلاح گانو واحدونه مهمی اوياد ولو وړ نښی ېی دادي . بناغلی لاړدین کولاي شول چې دا توله گډلی غونډ له داسی وکاږي:

دپښتو دفعلی اصطلاح گانو دواحدونو مهمی اوديادولو وړ نښی چې دجوړښت له مخی په په دغه مقاله کی ډلبندي (صنف بندي) شی دادي . خو دا ډول ده ځکــه نه غوښتل چې منځنی ښکاره شوي بیاداري غونډ لی موخن توك یا مطلوب عنصر (واحدونه) پوري نه بلکی په ناغوښتلی توك (نښی) اړه پیداکوله . که توله گډ لی غونډ له یو په غبرگغونډ لی اړولی راي لکه: دپښتو دفعلی اصطلاحگانو دواحدونومهمی اوديادولو وړ نښی دادي چې دجوړښت له مخی به په دغه مقاله کی ډلبندي (صنف بندي) شی . په دي ډول کی بیاهم دمخنی ډول گانه کیږده او دارغونډ لی ایښونی خبر (دادي) هم بی ځایه ښکاريده . خــو پواځینی کره سمونه یې داسی کیږده چې داريغونډ لی دایښونی برخه یې له (نوموالی) یاپه بله وینا له نړلوالی یا ملکیت څخه ژغورلی واي لکه په دي ډول: ( دپښتو دفعلی اصطلاح گانو واحدونه — چې دجوړښت له مخی به په دغه مقاله کی ډلبندي (صنف بندي) شی — دامهمی اوديادولو وړنښی لري:) په نــگه پښتو لکه:( دپښتو کړ الوگ نو یوونونه — چې دجوړښت له مخی به په دغه لیکنه کی ډلبندي شی — داغوري نښی لري ؛ ) — په صنف بنديو وويشل شی یوه دخنداوړ تیروتنه ده (صنف بندي) پخپله د (ویشنی) مانا لري ویشنه بیا څنگه ویشل کیږي .

که څه هم ځینی لیکوال چې په پښتو کی له گډلوغونډ لو سره کورتنابانډي (مخالف) دي . پامنی گډ لی غونډ لی په دوو دوو بیلا بیلو پرله پسی بوستوو غونډ لو تړلی کوي خودا کار دژبی لهسـ ـ یې ار (اقتصادي اصل) څخه تیري دی . په دې مانا چې په هره ژبه کی داهڅه کیږي چې تروسه وسی پوري چې په لږ و اوپرله غښتو (منسجمو) جوليزوتوكونو سره ډيره مانا اوجاج (مفهوم) ښکاره کړ شی نه داچې په سرچپه ډول په ډيرو ناپرله غښتو جوليزوتوكونو سره

لړ ه مانا اوجاج ۰ نوکه یو بشپړ اوناشنونی مانیزیوون( واحد )په څو جولیزو یوونو ( لفظی واحدونو) کی څرګندشی له ژبنی دوي او سول (منطق ) څخه ښکاره سرغړاوي دي ۰
او س بیرته را ځو خپلی ګـډ لی غونډ لی ته چی بیلا بیل رغنده توکونه یی څه راز خپل منځی اړیکی او اوډون لري :

د ارغونډ لی ایښی له پښتو دود سره سم اوډ ل شوي ۰ دکړ ند ( واحدونه) اړ وند توکونه دمخه اوپه خپله کړ ند وروسته راغلی دي ۰ دویم تولوییکی (( د )) کیداي شو چی وسپمـیزي ځکه پښتو د ستاینوم په توګه هم کارول کیږ ي ۰ د دي ارغونډ لی بله برخه( ایښونی ) د اوډ ون له مخی هم کومه نیمګړ تیا نلري ۰ یواځی د (یی ) زیاتوالی پکی دګوتیونی ( انتقاد ) ټکی د ي چی دمخه موپرې‌رڼا واچوله ۰ نغه ټوله ارغونډ له دواړ و خواووته دخو اړ وندو توکونو یه د زلود لو سره یوه ارته یو ستوي‌ـ د ایښونی د ارتوك په ډول د ( دي ) په لرلو سره یوه نوموالـه اوپه مانیز ډول یوه خبري‌غونډ له بللاي شو ۰ دابله منځپیښی خرمه غونډ له د اوډ ون له پلوه سمه د ه خود تونپیر په غونډ (په دغی مقالی کی ) ( دغه ) او (مقاله) هسی بیځایه په اوښتی بڼـه کښـل شوي دي‌ځکه په ( لیکنی معیاري )پښتو کی دوبونکو د ډیرښت په لا سوند (پـه ـ کی ) دخپل اړ وند څیز نوم پبایلی ونجون دود نه دي لکه (په اسره کی ) ـ ( پـه کوټـه کی ) لکه دحمید مومند په یوه د رست شعر کی (خط پرمخ دصنم راغی که سپوږ می شوه په هاله کی ـــــــ دایی غابی په خوله کی زیب کا که ژاله شوه په لاله کی ۰۰۰ )۰

## کـــړاوونـــــــــــه

١ــ غونډ له پوهه څه ته وایی اوله څه نه غزیږي ؟

٢ــ دغونډ لی پیژندونن (تعریف) څنګه کیږي ؟

٣ــ یوه غونډ له په کوموډوو سترو برخو ویشل کیږي ؟

٤ــ دغونډ لی لویر بنستیز توك کوم دي ؟

٥ــ نیمګړي غونډ له څه ته وایی ؟

٦ــ غونډ څه ته وایی ؟

٧ــ دغونډ لی رغنده توکونه (متشکله اجزاء) کوم دي ؟

٨ــ په پښتو غونډ لی اوډون څه ډول دي ؟

٩ــ دګرامري چاراومانا له مخې دغونډ لی ډولونه وښیاست !

١٠ــ غونډ له دجولی له مخې پرڅو ډوله ده ؟

١١ــ یوستوي غونډ له پرڅو ډوله دویلګی یی وښیاست !

١٢ــ دوه یوستوي غونډ له په انځرر لیک کی وښیاست !

لیز تر لیزه دجولی له مخې داهونډ لیزه غونډ له ډول راوپیژنی :

١٣ــ که په میوند کی شهید نه شوي ــ ګرانه لالیه بی ننګی ته دي ساتینــه

١٤ــ په تور توپك ویشتلی راشــی ــ دبې ننګی اواز دې مه را څــه میـنه

١٥ــ اشنامی تلپروطن کینــږد ــ په تار دزلفو به کفن ورته ګنډ مــــه

١٦ــ مخ دې څراغ خوله دې غنچه ده ــ دزړه حیران یم چې پتنګ که بوراشمه

١٧ــ ولي په زړه ویرنه ځنبرم ــ چی مورته شاکړي ماته شنه له خنداشینه

١٨ــ توري کوه بزي به هوښــې ــ که بریته وي خوانان تل پروطن مرینــه

١٩ــ اخربه وران شی پیښــوره ــ دننګرهار پیغلی نیراد رته کوینـــه

٢٠ــ له خدارو سترګو دي جارشم ــ چه په زړا شی مرغلري تویـنــــه

په دې لاندې لنډو یو کې اړې (خپلواکې) او څرمه (بیواکې) غونډې لې سره توپیر کړئ:

۲۱ــ که زه خبر وای چې بیلتون دی ــــ ما به مې یار تر لاس نیولی ګرځونه

۲۲ــ که راته ګوري د زړه ګـورم ــــ که راته نه ګوري پروا دی نلرمه

۲۳ــ بیلتون پر تنګه کوڅه راغی ــــ ما ویل سلا دې ده ویل کور دې ورانومه

۲٤ــ ماته وعده د خولګۍ راکړه ــــ چه که د تورو پرسر لاروې درپه شمه

۲٥ــ مینه یم منکره نه یم ــــ که شینکی خال مې د څړ وپه څوکو څینه

۲٦ــ له لرې مړم له نژدې سوزم ــــ زه لیونې طاقت د دواړو نلرمه

۲۷ــ د خوشالۍ یاران مې ډیر وو ــــ چې بنادې ولاړه ټولو پورته کړل لاسونه

۲۸ــ یاري خوتاکړه ما خو نکړه ــــ چې تومت راغی او سپرماکړې ننه

۲۹ــ سپوږمۍ پرما دې څه احسان دی ــــ زما اشنا د دیواله سیوري ته څینه

۳۰ــ سپوږمۍ سرو هه را خیژه ــــ زما اشنا د تورو شپو منزل کوینه

د اوروسته شعرونه له سم اوډون سره په نثر ولیکئ:

۳۱ــ د مسلمان زړګي آزار چې اخلې ــــ څه شول پردې چې کلیساته د رومې

۳۲ــ مرې د زیار خود ایوسوال کړ محراب ــــ چې له ماد رومې وایه چاته د رومې

۳۳ــ د سپیڅلو ګروهو ګچه مې له پاکوګاهو ــــ او د هیلو پیمانه مې نهیلونه وپوښته

۳٤ــ پرژوند پیبنو که د زیار په رښتیا خبرید ل ــ پرهرژلی غواړې نارام ژوند یې له شعرونه وپوښته

۳٥ــ که ستړ شوی زیاره مینه کې دیار ــــ دیاد څلی به دې جوړ شي له ایرو!!

۳٦ــ ګړ نه څه ته وایي او په د ریا ولاتینی یې څه بولې؟

۳۷ــ ګړنې د مانا اورغاونې له مخې څو ډوله دی؟

۳۸ــ د ګرامري چار له مخې د ګړنې ډولونه وښیاست!

۳۹ــ (له سره تیر بدل) د پورتنیو ډولونو له مخې څه راز ګړنه ده؟

٤۰ــ یوکایي او مجازي مانا لرونکې وې او ګړنه سره څه توپیر لري؟

نوي نوموں

| | |
|---|---|
| اټکل | گومان ـ حدس ـ تخمين |
| ـ شمير | تخميني ياغير معيين عدد |
| اخخ | ماٴخذ |
| اخځليک | د ماٴخذونو فهرست |
| ار | اصل ـ اصيل ـ اصلي ـ پرنسيپ |
| اريير | اصلي حالت |
| ارته پوستوي‌غونډ له | منکشفه ساده جمله |
| ار شمير | اصلي عدد |
| ارغونډ له يا اره غونډ له | اصلي جمله |
| ارماني | تمنايي |
| اره | اصل ـ منشاٴ ـ نسب |
| اره پوستوي‌غونډ له | اصلي ساده جمله |
| اړ | شرط ـ مانع |
| اړوتي | شرطي ـ مشروط |
| اړوند | تابع ـ متعلق ـ مربوط |
| اړوندي | تابعيت ـ تعلق ـ ارتباط ـ مربوطيت |
| اړيکپير | ارتباطي حالت |
| اړيکومځري | ارتباطي ضمير |
| اړيکوييکي | ارتباطي کلمه ( حرف ربط ) |
| اړين | ضروري ـ حتمي |
| انځورليک | گراف ـ دياگرام |

| | |
|---|---|
| اند | فکر ـ مفکوره |
| ـ پوهه | ایدیولوژي |
| ـ دود | طرز فکر |
| انگازه | انعکاس ـ عکس العمل |
| انگینوم | صوتی نوم ـ نام اوا |
| انگینومیز | نام اوایی |
| اواز | فونیم ـ واج |
| اواز پوهه | فونیمیکس ـ فونیمشناسی ـ واجشناسی |
| اوډل | ترتیبول ـ تنظیمول |
| اوډون | ترتیب ـ تنظیم |
| اوریز | سمعی ـ سماعی ـ شنوایی |
| اوړون | گردان ـ تصریف |
| اوړونی | گردانی ـ تصریفی |
| اوړیدونی | گرد انیدونکی ـ متصرفه |
| ـ ژبه | متصرفه ژبه |
| ـ گړ | گرد انیدونکی مورفیم |
| اوستربل | پسبینه ـ پرستپوزیشن |
| اوسترمهال | استقبال ـ مستقبل |
| اوښتون | تغییر ـ تحول ـ انقلاب |
| اوښتی پیر | مغییره حالت |
| اینبونی | مسند ـ خبر ـ گذاره |

| | |
|---|---|
| اینس | مسند الیه ــ مبتدا ــ نهاد |
| بشپړ | مطلق ــ مکمل |
| ــ کړ | مطلق فعل |
| ــ تیرمهال | مطلقه ماضي |
| ــ اوسمهال | مطلق حال |
| ــ اوسترمهال | مطلق استقبال |
| بشپړ اند | بشپړ وونکی |
| ــ کړ | سوپلاشیف یا ناقص فعل |
| ــ ترك یا توك | بشپړ وونکی عنصر یا جزء |
| بیاپینس | تکرار |
| بیجار | بیکار ــ بی فعالیته ــ مجهول (فعل) |
| ــ کړ | مجهول فعل |
| ــ کړ نوم | مفعولی صفت |
| بیدوده | بیقاعده |
| بیدودي | بیقاعده گی |
| بیلتون | فصل |
| بیلنست | اشتقاق |
| بیلنستي | اشتقاقی ــ مشتق |
| بیږاك (غږ) | کنسوننت ــ صامت |
| پایخوړ | ضمیمه ــ تعلیق |
| پایلینوي | نتیجه گیري ــ استنتاج |
| پایله | (فعلی) خاتمه ــ نتیجه |
| پایلیزه | (دکتاب) خاتمه |

| | |
|---|---|
| پرتله | مقایسه ــ مناسبه ــ نسبت |
| پرتلیز | مقایسوي ــ نسبي |
| پنسرم | ذات اسم |
| پژنی | بدني ــ جسمي ــ ذاتي |
| پڅړي | بدن ــ جسم ــ ذات ــ وجود |
| پښتو پوهاند | گرامریستان |
| پښتویه | گرامر ــ دستور ــ صرف ونحو |
| پښتو ییز | گرامري |
| پلوي | طرفدار ــ سمتي ــ توجیهي |
| ــ نومځري | سمتي ضمیر |
| پورغز | واج قرضي |
| پوروی | مستعار لغت ــ واژه ي قرضي |
| پوړ شمیر | رتبي یا وصفي عدد |
| پوښتغونډ له | استفهامي جمله |
| پوښتنښـــه | د سوالیې علامه |
| پوښتیلیک | پرسشنامه |
| پوښتومځري | استفهامي ضمیر |
| پوښتنی | استفهامي |
| پیر | مرحله ــ دور ــ دوره ــ حالت |
| پیژند | ارتیکل ــ حرف تعریف |

| | |
|---|---|
| ـ پانه | استعلامیه ورقه |
| پیوستون | وصل |
| تاړي | وند ـ افیکس |
| تړغبرگغونده له | عطفیه مضاعفه جمله |
| تړوییکی | حرف‌عطف ـ دعطف توري |
| تړانس | امکانی ـ اقتداري |
| ـ کړ | ـ فعل |
| توري | حرف ـ گرافیم |
| توسن | سبب ـ علت |
| ـ پییر | الی حالت |
| ـ غونده له یا توسن‌غونده له | علتیه جمله |
| ـ وییکی | دعلت توري |
| توسنی | الی ـ علتی ـ علتیه ـ معلول |
| تولګه یاتوکی | عنصر ـ ماده |
| تول | مال ـ ملکیت |
| ـ نوم | مضاف |
| ـ نومځري | ملکی یا اضافی ضمیر |
| ـ تون | ځاي ـ ظرفیت |
| ـ پییر | ظرفی حالت ـ لوکاتیف |
| تونی | ظرفی ـ مکانی |
| ـ کـرول | مکانی قید |

| | |
|---|---|
| تیرمهال | ماضی ــ تیره زمانه |
| ــ کړ | ماضی فعل |
| ټوك | جزء ــ جلد |
| ټوکړ | پاراګراف |
| ټولنوم | عام اسم |
| ټولی | کتیګوري |
| ټولیز یا ټولوال | کلی ــ عمومی ــ عامه ــ مجموعی ــ جمعی |
| جاج | مفهوم |
| جوت | معلوم ــ ثابت ــ مشخص |
| جوله | بڼه ــ شکل ــ لفظ |
| جولیز | شکلی ــ ظاهري ــ لفظی |
| چار | عمل ، عملیه ــ فعالیت ــ فنکشن |
| ــ وال | فعال ــ معلوم |
| ــ ــ کړ | معلوم فعل |
| ــ ــ ــ نوم | فاعلی صفت |
| ــ انګ | عکس‌العمل ــ بازتاب |
| ځانګړتیا یا ځانګړنه | خصوصیت ــ خاصه |
| ځانګړ نومځري | شخصی ضمیر |
| ځانګړي نوم | خاص اسم ــ علم |
| څپه | هجاء ــ سیلاب |
| څپیز | هجایی ــ سیلابی |
| څرګندنی | تشریحی ــ توضیحی |

| | |
|---|---|
| ــ غونډه له | بیانی یا توضیحی غونډه له |
| څرګندوونکی | بیانیه ادات |
| څرمه | فرعی ــ ضمنی ــ الحاقی |
| ــ غونډه له | فرعی جمله |
| څرنګوالی | کیفیت |
| څرنګیز | کیفی |
| څومره والی | کمیت |
| څومره ییز | کمی ــ کمیتی |
| څیز نوم | اسم ــ سوبستانتیف |
| څیز نومیز | اسمی |
| څیز نال | غیرشخصی |
| خبر | خبر ــ مسند ــ ګذاره |
| خبري | خبري ــ بیانی ــ بیانیه |
| ــ غونډه له | خبري جمله ــ بیانیه جمله |
| ــ کړ | خبري یا بیانیه کړ |
| خپلواك (غز) | زاول |
| خپلواکه غونډه له | مستقله یا اصلی جمله |
| خج | فشار |
| خــجن | فشار لرزنکی |
| دود | قاعده ــ رواج ــ مروج |
| دودیز | باقاعده ــ عنعنی ــ متداول |
| دوی | قانون |

| | |
|---|---|
| ډیرګړی | جمع |
| روزد (ي) | معتاد |
| روز دتیا | اعتیاد |
| روزدنی | اعتیادي |
| روز دي | عادي |
| ـ کړ | اعتیادي فعل |
| روستاړي | پسوند ـ لاحقه ـ سفیکس |
| زورخج | دینامیك‌خج |
| ژبپوهاند | زبانشناس |
| ژبپوهنه | زبانشناس |
| ژبپوهنیز | لینګویستیکی ٠ |
| ژبنی | لسانی |
| ستاینوم | صفت |
| سرپل | پیشینه ـ پرپوزیشن |
| سرغاړي | مستنکف ـ سرکش ـ متمرد ـ باغی |
| ـ غونډ له | مستنکفه جمله |
| سول | عقل ـ منطق |
| سولیز | معقول ـ منطقی |
| شمیر تړنګ | عددي ترکیبونه |
| شمیرنوم | عدد (اسم) |
| شننه | تجزیه ـ تحلیل ـ تفسیر |
| ښځینه | موٴنث |

| | |
|---|---|
| غاړه | لحن ــ ترنم |
| غبرگغږ | ډیفتونگ |
| غبرگغونډ له یا غبرگه غونډ له | مضاعفه جمله |
| غبرگون | انعکاس ــ جواب |
| ــ کړ | انعکاس فعل |
| ــ نومځري | انعکاس ضمیر |
| غږ (زغ) | فون ــ صدا ــ سونډ |
| ــ پوهه | فونو لوژي |
| ــ پوهیز | فونولوژیکی |
| غوښتنی | دعائیه ــ مطلوب |
| ــ کړ | دعائیه فعل |
| غونډ | گروپ ــ فقره |
| غونډ له | جمله |
| ــ پوهــه | نحو ــ سینتکس |
| ــ ییز | جملوي |
| ــ پوهیز | نحوي |
| غونډ نوم | اسم جمع |
| کړ | فعل |
| ــ اوړ ون | دفعل گردان |
| ــ تړ | ... |
| ــ توک | فعلی عنصر |
| ــ غونډ | فعلی گروپ |
| ــ مهال | فعلی زمانه |
| ــ نوږ | فعلی جنس |

| | |
|---|---|
| — نوم | فعلي يا مشتق نوم |
| كړند | فاعل |
| — پير | فاعلي حالت ــ نوميناتيف |
| كړوال | فعلي |
| — غونډ | فعلي گروپ |
| كړواله غونډ له | فعلي جمله |
| — گړنه | فعلي اصطلاح |
| — ول | قيد |
| — ولي | قيدي |
| كړولى | فعلي ريښه |
| كړولي غونډ | قيدي گروپ |
| كړي | مفعول |
| — غونډ | مفعولي گروپ |
| — پير | مفعولي حالت |
| گډ غونډ له يا گډه غونډ له | مركبه جمله |
| گډ لي غونډ له | مختلطه جمله |
| گړ | مور فيم ــ واج |
| — پوهه | مور فيمولوژي ــ واجشناسي ــ حرف |
| — پوهيز | مور فيمولوژيك ــ صرفي |
| گړ دود | لهجه ــ گويش |
| — پوهه | لهجه شناسي |
| گړنپوهنه | اصطلاحشناسي ــ فرازيولوژي |
| گړنه | اصطلاح ــ محاوره ــ ايديم ــ فراز |

| | |
|---|---|
| ګړنی | اصطلاحی ــ محاوروي ــ شفاهی |
| ګڼه | عدد ــ افراد وجمع |
| ګومانی | شکی ــ احتمالی |
| لالرنغوتنو مخري | لالري اشاري ضمير |
| لرتیر مهال | بعید ه ماضی |
| لرستاینوم | د مسند صفت ــ د پریدیکات صفت |
| لرکړی | بالواسطه مفعول ــ داتیف |
| ــ پیر | د بالواسطه مفعول حالت ــ داتیف |
| لرنغوتنو مخري | لري اشاري ضمير |
| لښتیلیك | جدول |
| لنډ تیرمهال | قريبه ماضی |
| لنډ ستاینوم | د مسند اليه صفت ــ نژدي صفت |
| لنډ کړي | بی واسطه مفعول ــ اکوزاتیف |
| ــ پیر | د بی واسطه مفعول حالت ــ اکوزاتیف |
| لوستلیکی | کتاب قرائت ــ د رسی کتاب ــ تکسبوك |
| لوښتن یالوښین | الی ــ انسترو منتال |
| ــ پیر | الی حالت ــ انسترو منتاتیف |
| لوښی | ظرف ــ اله ــ سامان |
| لیږند فعل | متعدي فعل ــ ترانزیتیف فعل |
| ــ چار کړ | کوزاتیف فعل ــ مصدر صناعی |
| لیکلړ | لست ــ مينيو |
| لیکنښه | د تنقيط علامه ــ پنکچويشن |
| لیکنی | تحريري |

| | |
|---|---|
| لیکس | کتاب |
| ـ پلور | کتابفروشی |
| ـ پلوري | کتابفروش |
| مانا | معنی ـ معنا |
| ـ پوهه | علم معانی ـ سیمانتیك |
| ـ توك | معنوي توك |
| ـ نوم | اسم معنی |
| ـ ونج | معنوي تغییر |
| مختاړی | پیشوند ـ سابقه ـ پریفیکس |
| مخیکړ | فعلی سابقه ـ پریویرب |
| مرستیالکړ | معاون فعل |
| ملهغونډه له | ملگري یا فرعی جمله |
| منځپیښنی غونډه له | معترضه جمله |
| منځتاړي | میانوند ـ انفیکس |
| منځوالکړ | انعکاسی فعل |
| موخه | هدف ـ مقصد ـ مطلب ـ مطلوب |
| موخن | مطلوب |
| نابشپړ کړ | غیر مطلق فعل ـ استمراري فعل |
| ناپاي | ناتمام ـ مصدر ـ اینفینیتیف |
| ناشنونی | لایتجزا ـ غیر قابل تجزیه |
| نالیزند کړ | لازمی فعل ـ اینترا نزیتیف فعل |
| ناوړیدونی | غیرمتصرفه ـ نه گردانیدونکی ـ نه اوړیدونکی |
| نرینه | مذکر |

| | |
|---|---|
| نغوته | اشاره |
| نغوتنو مخري | اشاري ضمير |
| نوچاړ | ابتکار ـ اینیسیاتیف |
| نوز نوم | اسم جنس |
| نوز ي | جنس |
| نوم | اسم |
| ـ اوړون | د اسم گردان |
| ـ اوښتون | د اسم تغییر |
| ـ پیر | اسمی حالت |
| نومخري | ضمیر (مخري ـ نماینده) |
| نوم نوزي | اسمی جنس |
| نوموال یا نومیز | اسمی |
| ـ غونډ | اسمی گروپ ـ مسند الیه |
| نومواله غونډ له | اسمی جمله |
| ـ گړنه | اسمی اصطلاح |
| ـ لیك | فهرست اسماء یا اعلام ـ اینډیکس |
| نومونپوهـه | ترمینولوژي |
| نومونه | نامگذاري ـ اصطلاح (علمی ـ تخنیکی) ـ ترم |
| نومیرل | تشخیصول |
| نومیز یا نوموال | اسمی |
| نیمواك (غږ) | نیم واول ـ شبه واول |
| نیولیك | فهرست مندرجات |

| | |
|---|---|
| وتونپیر | د مفعول منه یا منشایی حالت ــ ابلاتیف |
| ورتلون پیر | د مفعول له حالت |
| ورمند ون | امر ــ حکم ــ قضاوت |
| ورمند ي | امري ــ قضاوتی |
| وګړپوهنه | اتنولوژي ــ انتروپولوژي ــ بشرشناس |
| وګړي | شخص ــ صیغه |
| ولړ | ریشه ــ جذر ــ روټ |
| ونج | بدل ــ عوض ــ بدلون ــ معاوضه |
| ونجول | بدلول ــ تبدیلول ــ عوضول ــ معاوضه کول |
| ونجون | بدلون ــ معاوضه |
| ونجیدل | بدلیدل ــ عوضیدل |
| وور شمیر یامات شمیر | کسري عدد |
| ویش شمیر | انقسامی عدد |
| وی | لغت ــ کلمه ــ واژه |
| ــ اوډون | ترتیب کلمات |
| ــ پانګه | لغوي ذخیره ــ ویکا بولري |
| ــ پور | قرض واژه یی |
| ــ پوهه | لغتشناس ــ واژه شناس |
| ــ رغاونه | لغوي ساختمان ــ واژه سازي |
| وییز | لغوي ــ کلموي |
| ــ خج | لغوي فشار |
| وییکو مخري | اداتی ضمیر |
| وییکی | ادات ــ حرف ــ پارتیکل |

| | |
|---|---|
| همیشنی یاهمیشه ین | استمراري ــ دایمی |
| هیبنی | حیران ــ متحیر ــ متعجب |
| هیښتیا | حیرانی ــ تحییر ــ تعجب |
| هیښنده | محیر ــ تعجباور |
| هیښنی | تعجبی |
| یوستوي | ساده ــ بسیط |
| ــ غونډله | بسیطه یاساده جمله |
| ــ وی | بسیطه کلمه |
| یوګړی | مفرد |
| یوون | واحد ــ یونټ |

ویی پانگــــــه

| پښتــــو | ناپښتــــو |
|---|---|
| اخځ | ماٴ خذ |
| ــ لیك | دماٴخذونو فهرســـت |
| آر | اصل ــ پرنسیپ ــ اصیل ــ اصلی |
| ــ پوهه | ریشه شناسی ــ فقه اللغه ــ اتمولوژي |
| ارزښت | ارزش ــ اهمیت |
| ارزکتنــه | ارزیابی |
| ارزونه | اسعار |
| آرشمیر | اصلی عدد |
| ارواښاد | مرحوم ــ شاد روان |
| آروالی | اصالت |
| اروپا گروهی | اروپایی مشرب |
| آره | نسب ــ منشاٴ |
| له ـــــ | اصلا ــ په اصل کی |
| آړ | شرط ــ مانع |
| اړپیچ | اختلاف ــ تضاد ــ ضد |
| اړپیچن | ضد ــ متضاد |
| اړنگ | شك ــ اشتباه |
| ــ لاندي | مشکوك ــ مشتبه |
| اړوتی | مشروط ــ شرطی |
| اړوند | مربوط ــ مرتبط ــ متعلق ــ تابع |
| اړوندي | همبستگی ــ تعلق ــ ارتباط ــ تابعیت |

| پښتو | ناپښتو |
|---|---|
| اړیکی | رابطه ــ ارتباط ــ تعلق (جمع) روابط ــ تعلقات ــ مناسبات ــ تماسونه |
| اړین | ضروري ــ حتمی |
| اسمانڅك | اسمانخراش |
| اغیز | نفوذ ــ تاثیر |
| اغیز من | موءثر ــ متاءثر ــ متنفذ ــ نافذ |
| اغیز منی | موءثریت ــ نافذیت |
| اغیزه | تاثیر ــ تاءثر |
| اکر | وضع |
| الواك | نظر ــ نظریه ــ نگاه ــ تیوري |
| ــ د ود | طرزنظر |
| ــ هم | همنظر |
| الواکی | نظري ــ تیوریکی |
| ان (هن) | اینك ــ حتی |
| انځور | رسم ــ تصویر ــ نقش ــ تمثیل ــ گراف |
| ــ لیك | گراف ــ دیاگرام ــ پیکتوگرام |
| ــ یز | ترسیمی ــ تصویري ــ مصور ــ تمثیلی ــ دراماتیك |
| اند | فکر ــ مفکوره |
| ــ پوهه | ایدیولوژي |
| ــ د ود | طرز تفکر |
| ــ لیك | هنر وارث ــ ایدوگرام |

| پښتو | ناپښتو |
|---|---|
| ــ ي | فکري ــ مفکر ــ متفکر |
| انګ | حس |
| انګونه | حواس |
| انګیرل | گومان کول ــ تعبیرول ــ حدس ول ــ گڼل ــ |
| انګیرواله | ایدیالیزم ــ انگارگرایی |
| اوبد انځی | نساجی فابریکه |
| اوبدانه | نساجی ــ بافنده گی |
| اوریدا | سماع ــ استماع |
| آوریز | سمعی ــ شنوایی |
| اُوریز | بیرغ یی |
| اوسپنيز | اهنی |
| اوښتون | انقلاب |
| اوښکن | اوښکی بهوونکی ــ اشک اور ــ اشکریز |
| ــ اوګی | ــــ غاز |
| ایرنج | خاکستردانی |
| بادړوړه | برف کوبه |
| بد اندی | بداندیش ــ بدخواه |
| بد وین | بد بین |
| بډ | حریف ــ مقابل ــ نظیر |
| ــ والی | تقابل ــ مقاله |
| برخه وال | سهیم ــ شامل (کنفرانس ...) |

| پښتــــو | ناپښتــــو |
|---|---|
| برېښنا ګاډي | برقی موټــر |
| چــم ګاډي | ترموای |
| بشپړ تیاىن | تکاملی |
| بشرواله | بشر دوستی ــ اصالت بشري ــ هومانیزم |
| بلغز | الوفون |
| بلګړ | الومورف ــ واجګونه |
| بلوس | تجاوز ــ تیري ــ غصب |
| بلوسګر | متجاوز ــ غصوونکی ــ اشغالګر |
| بوټپوهاند | بو تانیست |
| بو ټپوهنه | ګیاشناس ــ بوتانیک |
| بوټیانـه | بوتانیک |
| بولنتون | قوماند انی |
| بولند وي | قوماند ان |
| بولنه | مقوله |
| بهر | خارج |
| بهرنی | خارجی |
| بیابانګرځی | بیابانګرد |
| بیارغاونه | بازسازي ــ رېستوریشن |
| بیالیکون | باز نویس |
| بیخبـنا | زبرېنا |
| بیدوده | مستثنی ــ بی قاعده |

| پښتو | ناپښتو |
|---|---|
| بېدودي | استثناء ــ بی قاعده گی |
| بېلــتا | میزه |
| بېلا بېل | مختلف ــ بیل بیل |
| بېلښت | اشتقاق |
| بېلښتي | اشتقاقی ــ مشتق |
| بېلنګ | مشتق |
| بېلنګونه | مشتقات |
| پاټکی | طبقه |
| پاټکیز | طبقه یی ــ طبقاتی |
| پازپېژاند | وظیفه شناس ــ مسوولیت شناس |
| پازوالی | مسئوولیت |
| پانګوال | سرمایدار |
| پانګواله (پانګوالی) | سرمایداري |
| پایلنیوي | نتیجه گیري ــ استنتاج |
| پایله | خاتمه ــ نتیجه |
| پایلیزه | خاتمه (کتابوغیره) |
| پتییل | تصمیم نیول |
| پچار | فعال |
| پدل | اثر ــ تابو ــ تحریم |
| ــ وی | تحریم شوي کلمه ــ تابو |
| پراختیا غوښتنه | توسعه طلبی ــ توسعه جوبی |

| | |
|---|---|
| پښتو | ناپښتو |
| پراختیایی | ترسعوي |
| پرتلل | مقایسه کول ــ قیاسول ــ مقابله کول |
| پرشاتګ | عقب نشینی ــ قهقرایی سیر |
| پرګنغونډه | میتینګ ــ جلسه (پیښاور) |
| پرګنواله | کمونیزم |
| پرګڼه | کمون ــ توده ــ کتله |
| پرګنیز | کمونی ــ توده یی ــ کتلوي |
| پرله پسیوالی | تسلسل ــ تواتر |
| پرله غښتل | منسجمول |
| پرله غښتی | منسجم |
| پرله غښتیا | انسجام ــ نظم ونسق |
| پرمختللی | مترقي ــ پیشرفته |
| پرمختیا | انکشاف |
| پرمختیایی | انکشافی |
| پریکړه | فیصله ــ مقاطعه ــ تصمیم |
| ــ لیک | فیصله لیک ــ قطعنامه |
| پژنی | بدنی ــ جسمی ــ عضوي |
| پژي | بدن ــ جسم ــ عضویت ــ اورګان |
| پښت پوهاند | نسب شناس ــ ژینو لو ژست |
| پښت پوهنه | نسب شناسی ــ ژینو لوژي |
| پلارواکی | پدرشاهی |
| پلوي | طرفدار ــ وابسته |

| پښتو | ناپښتــــــو |
| --- | --- |
| پلوي | طرفداري |
| پوچاندي | بداندیش ــ بدنیت ــ بدسګال |
| پورژباړه | عاریتی ترجمه |
| پورنی | قرض ــ عاریتی ــ مستعار |
| پورویی | قرض یا مستعارلغت |
| پوښتپاڼه | د استعلام ورقه |
| پوښتــنه | استفهامیه علامه |
| پوښتلیك | پرسشنامه |
| پوهنغونډ | دایره المعارف |
| پوهنیز | علمی |
| په بل پسی | د بل پسی |
| په بله وینا | په بل عبارت |
| په پاي کی | په اخر کی ــ بالاخره |
| په ترڅ کی | په ضمن کی ــ ضمنا ــ په صورت کی |
| په ټولیز ډول | په عمومی ډول ــ عموما |
| په رښتینــه | په واقعیت ــ په حقیقت کی ــ واقعا ــ حقیقتا |
| په وړاندي | په مقابل کی ــ په حضور کی |
| په هیچا پوري اړه نلري | د هیچاپوري اړه نلري |
| په یو مهال کی | د رعین حال |
| پیښلیك | تأریخ |
| پیښلیکونکی | مورخ ــ تاریخدان |
| ترژمی پسرلی ښه دي | د ژمی نه پسرلی ښه دي |

| پښتو | ناپښتو |
| --- | --- |
| له کابل څخه تر ننګرهار پوري | د کابل نه د ننګرهار پوري |
| پیيون | نظم ــ تنظیم |
| تړښت | ترکیب |
| تړښتی | ترکیبی ــ مرکب |
| تړنګ | مرکب ــ ترکیب |
| تړنګونه | مرکبات ــ ترکیبات |
| توکموانه (نژاد واله) | نژادپرستی ــ اپارتاید ــ نژادي تبعیض |
| توکیز | مادي ، عنصري |
| ــ واله | مادیت ــ ماتریالیزم ــ د مادي اصالت |
| تړنی | مکانی |
| تاپول | تاپیول |
| تبرپوهنه | نژاد شناس |
| تبرنی (تبري) | نژادي ــ قومی |
| ټولنپوهاند | جامعه شناس ــ سوسیولوژیست |
| ټولنپوهنه | جامعه شناسی ــ اجتماعیات ــ علم الاجتماع |
| ټولنواله | سوسیالیزم |
| ټولنیز | اجتماعی |
| ټولنیزیدل | اجتماعی کیدل |
| ټولوال | عمومی ــ عامه ــ همګانی |
| ټولوالی | اتفاق ــ اتحاد ــ یک پارچه گی |

| ناپښتو | پښتو |
| --- | --- |
| کتیګوري | تولي |
| عمومي — کلي | تولیز |
| ثابت — معلوم — مثبت | جوت |
| مثبت علم — ساینس | — پوهنه |
| اثبات — ثبوت | — تیا |
| شکل — صورت — لفظ | جوله |
| شکلي — صوري — لفظي — ظاهري | جولیز |
| چاپخانه — مطبعه | چاپخونه |
| عکس العمل — بازتاب — واکونش | چارانګ |
| سلوک — رفتار — ګذاره — معیشت | چال چلند |
| تصفیه خانه | چاڼتون ( چاڼځی ) |
| خود کشي — انتحار | ځان وژنه |
| خصوصیت — خاصیت | ځانګړتیا ( ځانګړنه ) |
| مخصوص — خصوصي — خاص — مختص — شخصي — فردي | ځانګړي |
| شخصي — فردي | ځاني |
| استثمار — استحصال — بهره کشي | ځبیښاک |
| استثمارګر — بهره کش | ځبیښناګر |
| جغرافیا | ځمکپوهنه |
| زمیندار — فیودال | ځمکوال |
| زمینداري — فیوډالیزم | ځمکوالي |
| قدرت — قوه — طاقت | ځواک |
| دقیق — متوجه | ځیر |

| پښتو | ناپښتـــو |
|---|---|
| څـار | مراقبت ـ انتظار |
| څارن | مراقب |
| څارنوال | مدعی العموم |
| څارنه | مراقبـت |
| څارو | مراقب ـ منتظر |
| څانګوال | متخصص ـ مسلکی ـ د رشتی خاوند |
| څانګه | شعبه ـ رشته ـ مسلك ـ موٴسسه ـ دیپارتمنت ـ تخصـص ٠ |
| څانګیز | رشته یی ـ مسلکی ـ تخصـصی |
| خښاك اويه | د څښلو اوبه |
| څلورلاري | چارراهی |
| څیړاند | محقق ـ متتبع |
| څیړندود | طرز تحقیق ـ د تحقیق متود |
| خبرتیا | معلومات |
| خبرځاي | د خبر منبع |
| خبرونه | اطلاعیه ـ ابلاغیه ـ اعلان |
| خپرندوي | ناشر |
| خپرنځی | محل انتشار ـ د نشرځاي |
| خپرنی | نشراتي |
| خپلمنځچار | ذات البینی تعامل یافعالت |

| پښتو | ناپښتـــــو |
|---|---|
| خپلمنځی | ذات البینی |
| خت | کمیس |
| ختی | زیر پیرهنی |
| د بیلگی په توگه | دنمونی په توگه |
| د رسته وال | مسلح ــ وسله وال |
| ــ ځواکونه | قواوې |
| د ساري په ډول | د مثال په توگه ــ مثلا |
| دود | رواج ــ عنعنه ــ مروج |
| دودیالی | مهذب |
| دودیز | عنعنی ــ متد اول |
| دوگړوشمیر یا زیاتوالی | دنفوسو شمیر یازیاتوالی |
| دوه گړي | تثنیه ــ دوال |
| دوه واله | دوالیزم |
| دوی | قانون |
| ــ غونډ | دقوانینو مجموعه |
| ــ لیك | قانوننامه ــ دستور نامه |
| دویمی ــ ( دویمنی ) | دومی ــ دومین ــ ثانوي |
| دوییزه | مثنوي ــ دوه رویگی |
| دینپوهنه | دینیات ــ دینی علم یا علوم ــ تیولوژي |
| ډار | خطر ــ ویره ــ دهشت |
| ډارناك | خطرناك |

| پښتو | ناپښتو |
| --- | --- |
| ډاروونکی | دهشت افگن |
| ډبر چاپ | سنگی چاپ ـ لیتوگرافی |
| ډبر لیک | کتیبه |
| ډبرین | سنگی ـ سنگین |
| ډلواکی | جمهوري ـ جمهوریت ـ جمهوري نظام |
| ډیر پیښی | کثیرالوقوع |
| ډیرپیښی | بسامد |
| ډیر څپیز | کثیرالهجایی ـ ډیر سیلابی |
| ډیر څښتنی | شرک ـ مشرکی |
| ډیرزیږي | کثیرالتولید |
| ډیر ژبی | څولسانه ـ پولی لینگوال |
| ډیر ژبیز | څو لسانه (قاموس ... ) |
| ډیر ښت | کثریت ـ اکثریت ـ میجاریتی |
| ډیر ښتی ( ډیروالی ) | اکثریتی |
| ډیر ښځمن | د خوښځو خاوند |
| ډیر ښځینی | تعدد زوجات |
| ډیرمانیز | کثیرالمعنی |
| ډیر میړوښی | تعدد ازواج ـ پولیاندري |
| ډیر ودون | تعدد ازدواج ـ پولیگامی |
| راکښون | جذب ـ جلب ـ جذابیت ـ جالبیت |
| ربړه | پرابلم ـ معضله |
| رغا | بیزاري |

| پښتو | ناپښتو |
| --- | --- |
| رغاونه | ساختمان ـ سازمان |
| رغاونی (رغاونیز) | ساختمانی |
| رغاوه | صنعت |
| رغاویز | صنعتی |
| روغتیایی | صحی |
| روښاندي | روشنفکر ـ منور |
| ریز (ریژ) | برف کوچ |
| زړغه | ترد د |
| زړغی | مترد د |
| زغرګاډي | زره دار موتر |
| زغریالی | زره دار |
| ژپانګه | لسانی ذخیره ـ لغوي ذخیره |
| ژپوهاند | زبانشناس ـ لینګویست |
| ژپوهنه | زبانشناس |
| ژپوهنیز | لینګویستیکی |
| ژپېژاند | زباندان |
| ژبښود | د ژبې خود اموز |
| ژبښودنه | لسانی تدریس زبان اموزي |
| ژبلوست | د ژبې درس یا تدریس |
| ژبنی | لسانی |
| ژبونج | لسانی تغییر ـ لسانی تحول |
| ژغی | د مریض تذکره |

| پښتو | د اپښتو |
| --- | --- |
| ژمنه | وعده ـ تضمين ـ تعهد |
| ژويوهاند | زولوژيست ـ جانورشناس |
| ژويوهنه | زولوژي ـ جانورشناس ـ علم الحيوان |
| ژوند پوهنه | بيولوژي ـ زيست شناس |
| ژوند دود | د ژوند طرز ـ کلتور |
| ژوندنی | حياتي |
| ژونی | حيواني |
| ساپوهاند | روانشناس |
| ساپوهنه | علم الروح ـ پسيکولوژي ـ علم النفس ـ روحيات |
| ساييز | روحي ـ تنفسي |
| سپړنه | تشريح ـ شرح |
| سپړ | فون |
| ـ پوهه | فونيتيک |
| سيمايي | صرفجوانه |
| سپوږميز | قمري |
| ستاينليک | تقديرنامه ـ جايزه نامه |
| ستر | لوي ـ مهم |
| سترچاري | کلانکار ـ متکبر |
| ستورپوهاند | منجم ـ ستاره شناس ـ هياءت دان ـ استرونوم |
| ستورپوهنه | د نجوم علم ـ د هياءت علم ـ استرونومي |
| سرينا ( مخينا ) | روښنا |

| پښتـــو | ناپښتـــو |
|---|---|
| سرچپه | برعکس ــ معکوس |
| سرليك | عنوان ــ سرنامه |
| سرليکه | سرمقاله |
| سريزه | مقدمه ــ سراغاز |
| سړيه | شيريخ ــ آيسکريم |
| سړي سر | فی نفر ــ د سړي سر |
| ــ کال گټـه | د سړي سرکالنی عايد |
| ــ گټـه | کالنی عايد |
| سمدلاسه | سمدستی ــ دستی ــ عجالتا |
| سملاسی | فوري ــ عاجل |
| سمون | اصلاح ــ ترميم ــ تصحيح ــ ريفورم |
| ــ ليك | غلطنامه |
| سند | رائي |
| ــ اخيستنه | رائي گيري ــ ريفرند م |
| ــ ورکونه | رائي ورکونه |
| سوب | حاضر |
| سهـل | هضمول ــ تحمل کول |
| سيمه | منطقه ــ محل ــ علاقه ــ ناحيه ــ ساحه ــ حوزه |
| ــ ييز | منطقوي ــ محلی ــ علاقه يی ــ ناحيوي ــ حوزوي . |
| شپه ليك | شب نامه |
| شمارپوهنه | د احصائيی علم |
| شماري | احصائيوي |

| پښتو | ناپښتو |
| --- | --- |
| شمارخیړنه ( شمیرخیړنه ) | احصائیه . |
| شننه | تحلیل تفسیر |
| ښارمینه | ښاري ناحیه ـ کارته |
| ښځمنه | زنانه ـ سیاسر |
| ښځینه | زنانه یی ـ مونث |
| ښکارندوي | نماینده ـ نمایانده ـ ممثل ـ مظهر |
| ښکارندوی | نماینده گی ـ تمثیل ـ اظهار |
| ښکارنده | پدیده |
| ښکارنلیک | اظهارنامه |
| ښنده | افراط ـ مبالغه |
| ښندي | افراطی ـ اکستریم |
| ښوونپوهاند | پیداگوگ ـ د تربیی عالم |
| ښوونپوهنه | پیداگوژي ـ علم التربیه |
| ښوونیز | تعلیمی |
| ښه ترښه | فبها |
| غبرگغږ | دیفتونگ |
| غبرگون | جواب ـ عکس العمل |
| غورچاڼ | گلچین ـ منتخب |
| غوره | بهتر ـ مرجح ـ مهم |
| غوړاوو | چاپلوس |
| غوړاوي | چاپلوس ـ تملق |

| پښتو | ناپښتـــــو |
| --- | --- |
| غونډ | مجموع ــ گروپ ــ کل |
| غونډ ال | سیستم |
| کارنده | فعال ــ کاري |
| کارویش | تقسیم کار |
| کالخواي | ولی ــ فامیلی راکمــن |
| کرکیل (کرکیله) | کشت وکار ــ زراعتی چار |
| کرګر | دهقان ــ بزگر ــ زارع |
| کرنپوهه | علم زراعت |
| کرنه | کرهنــه ــ زراعت ــ کشت |
| کروندګر | ــ ــ ــ |
| کرونده | مزرعه ــ فارم ــ زراعت |
| کړاو (یوڅپیز) | تمرین ــ مشق ــ ممارست ــ جمناستیک ــ ادمان |
| کڅول | باالاپوشی ــ کوټ |
| کیڅ | قبر |
| ــ لیك | دقبرلوحه |
| کیدون | إمکان ــ احتمال |
| کیدونی | ممکن ــ احتمالی |
| ګیز | نازل |
| گ ِل | نازلیدل |
| ګچه | اندازه ــ سویه ــ سطح |
| ګسـر | ظلم ــ استبداد |
| ــ ګر | ظالم ــ مستبد |
| ګروهن | معتقد |

| پښتو | ناپښتـــــو |
| --- | --- |
| گروهول | معتقدول |
| گروهه | عقیده ــ اعتقاد |
| گروهیدل | عقیده پیداکول ــ گرویدن |
| گڼاگاره | جریمه ــ کفاره |
| گډۍ | کرتی ــ جمپر |
| گوډاگی (بړیخی) | عمال ــ کولابراتیور |
| گوریت | عقاب |
| لارښود | رهنما ــ پیشوا ــ رهبر |
| لاسبري | مسلط |
| لاسبری | تسلط |
| لاسکوی | زیردست ــ مادون ــ ماتحت |
| لاسکښلی | خطی ــ قلمی ــ دستویس |
| لاسکښنه | دستویس ــ قلمی یا خطی نسخه |
| لرغون خوښونه | قدامت پسندي |
| لرغون پوهاند | لرغون پیژندونکی ــ باستانشناس |
| لرغو نپوهنه | لرغون پیژندنه ــ باستانشناس |
| لرلید | دورنما |
| لروین | دوربین |
| لروینون | تلویزیون |
| لږښت | اقلیت |
| لږښتی | اقلیتی ــ اقل ــ اصغري |

| پښتـــو | ناپښتـــو |
|---|---|
| لسیزه | دهـــه |
| لګښت | مصرف ــ استهلاك |
| ــ وال | مستهلك |
| لګـښتی | استهلاکی |
| لنډ اندی | کوتاه اندیش ــ کوتاه فکر |
| لوستلیکی | درسی کتاب ــ تکسبوك |
| لولاند | مدرس ــ لیکچرر |
| لو لنګر | اواره |
| لووی | شاهد ــ ګواه |
| لوهـه | اشتها ــ ذوق |
| له | د |
| ــ پلوه | له درکه ــ له لحاظه ــ له طرفه |
| ــ توغه وتل | له عهدي وتل |
| ــ ځلمی سره | د ځلمی سره |
| ــ ځیلمی | یکسره |
| ــ خوا | دخوا |
| ــ ده څخه | د ده څخه |
| ژمی راهیسی | د ژمی راهیسی |
| ــ سنګ پرته | د سنګ پرته |
| لیږد | رحلت ــ هجرت ــ کوچ |

| پښتو | ناپښتو |
|---|---|
| ــ لیك | نقل ــ کاپی |
| لیږدي | هجري ــ مهاجر |
| لیکچه | رساله ــ کتابچه |
| لیکلاری | دلیکنی سبك ــ ستایل |
| لیك لیکانی | مکاتبه |
| لیکښنه | د تنقیط علامه |
| لیکلی | تحریري ــ کتبی |
| مانا | معنا ــ معنی |
| ــ بلون | تداعی المعانی |
| ــ بلونی | متداعی المعانی |
| ــ پوهه | علم المعانی ــ معنی شناسی ــ سیمانتیك |
| مخزیږد | قبل المیلاد |
| مخزیږدي | قبل المیلادي |
| مخګڼه | وصفی شمار |
| مړینشمیر | د مړو احصائیه |
| مټلیکی | جیبی کتاب |
| منګی | خزانی |
| موروا کی | مادرشاهی |
| موخن ( موخه وال ) | هندفمند ــ مطلوب |
| موخه | هدف ــ مطلب مقصد |
| مهالنی | موقوته ــ زمانی |
| مهالنی | جریده |

| پښتر | ناپښتو |
|---|---|
| مهالویش | تقسیم اوقات ــ پروګرام |
| مینه وال | علاقمند |
| ناپیلتوب | عدم انسلاک |
| ناپیلی | غیرمنسلک |
| ناسوب | غیر حاضر ــ غایب ــ پس شا |
| ناسوبتیا | غیر حاضري ــ غیابت |
| نړیوال | جهاني ــ بین المللی |
| نړیواله | بین المللیت ــ انترناسیونالیزم |
| نشتاند | منفی باف ــ نیالیست |
| نشتمن | نیستمن ــ نادار ــ مفلس |
| نشتمنی | نیستی ــ ناداري ــ مفلسی |
| نندګیرل | احساسول ــ محسوسول |
| نندګیرنه | احساس ــ حس |
| نوچار (نوښت) | ابتکار |
| نو زیږ | جنسی |
| نومهالی | عصري ــ مدرن |
| نوموال ( سړی ) | مشهور ( سړي ) |
| نومیالی | شهیر ــ مشهور |
| نوښته | اختراع ــ ابداع |
| نهیلی | نا امید ــ مایوس |
| نهیلی | نا امیدي ــ مایوسی ــ یاس |

| پښتو | ناپښتـــو |
|---|---|
| نیاو | عدل ــ انصاف |
| ــ چار | عادل |
| ــ من | عادل |
| یز | عدلی ــ قضایی |
| نیټـه لیك | کرونولوژي ــ تاریخنویس |
| واکمن | باصلاحیت ــ داقتدار په سر |
| ــ گوند | داقتدار په سرگوند |
| وټپوهاند | اقتصاددان |
| وټپوهنه | داقتصاد علم |
| وټیز | اقتصادي |
| ودانیز | عمرانی ــ تعمیراتی ــ ساختمانی |
| وده | رشد |
| ــ ییز | دودي په حال کی ــ مخ په وده (هیواد ...) |
| نوي پرمختایي هیواد ونه | پرمختـــیایي نوي‌هیواد ونه |
| ورځچاری | ابن الوقت ــ اپور تونیست |
| ورځچاري | ابن الوقتی ــ اپورتونیستی ــ اپورتونیزم |
| ورکوس | گمنام ــ بینام |
| وړنـــد ون | امر ــ حکم ــ حکمت ــ قضاوت |
| ورهـنـه | کسب ــ پیشه |
| وړتیا | اهلیت ــ کفایت ــ لیاقت ــ قابلیت |
| وړجم | پوستین |
| وزلوبه | بزکشی |

| پښتو | ناپښتو |
| --- | --- |
| وژنشمير | دقتل احصائيه |
| وګړپال | مردم پرست ـ مردم دوست |
| وګړپوهاند | بشرشناس ـ انتروپولوژيست ـ اتنولوګ |
| وګړ پوهنه | بشر شناسي ـ انتروپولوژي ـ اتنولوژي |
| وګړ شمير | دنفوسو شمير |
| وګړ شميرنه | دنفوسو شميرنه ـ سرشماري |
| وګړنې | مردمي ـ توده يي ـ خلقي |
| وګړ واک | ديموکرات |
| وګړ واکي | ديموکراسي ـ ديموکراتي ـ خلقي نظام |
| وګړيز | شخصي ـ فردي |
| ـ روستاړي | شخصي خاتمه ( ګرامر ) |
| ولس دښمني | ضد ملت ـ ملت پرور |
| ـ مين | ملت دوست ـ ملت پرور |
| ولسواک | ديموکرات |
| ولسواکي | ديموکراتي |
| ولسواله | مليت ـ نشنليزم |
| ولسولي | ملت داري ـ هم ملتي |
| ونډه | سهم |
| ونه ( لکه تنه ) | اندازه ـ سايز ( مندوزي ) |
| ويار | عيب |
| ـ من | معيوب |

| پښتــــو | ناپښتـــــو |
|---|---|
| وياړلن ( وياړن) | له افتخاره ډك |
| وياړن | مفتخر ــ مغرور |
| ويشاك | تجزيه طلبي |
| ويلاړ | عزم ــ اراده ــ تصميم |
| وييليكي | قاموس ــ فرهنگ |
| هان (منگ) | عمر |
| هاند (كول) | كوشش |
| هڅوب | كلتور ــ ثقافت |
| هڅوبيز | كلتوري |
| هڅول | تشويقول ــ ترغيبول ــ مايلول |
| هڅه | كوشش ــ اقدام ــ ميل ــ ميلان ــ تمايل ــ شوق |
| ــ وهاند | جد وجهد |
| هڅيدل | تشويقيدل ــ مايليدل ــ ذوق پيداكيدل |
| همهالي | همعصر ــ معاصر |
| هواپوهنه | هواپيژندنه ــ هواشناسي ــ مترولوژي |
| هوايي چلند | هوانوردي ــ هواپيمايي ــ هوايي ترافيك |
| هيښ | حيران ــ متعجب |
| هيښتيا | حيراني ــ تحير ــ تعجب |
| هيښنده | محير ــ حيرانوونكي |
| هيښني | تعجبي |
| هيواد | وطن ــ كشور ــ ميهن ــ مملكت ــ دولت |

| پښتــو | ناپښتو |
| --- | --- |
| ـ پال | وطنپرست |
| ـ پالنه | وطنپرستی |
| ـ پلورنه | وطنفروشی |
| ـ پلوری | وطنفروش |
| ـ وال | هموطن ـ وطندار ـ وطنپرست |
| ـ واله | هموطنی ـ وطندوستی ـ پاتریو تیزم |
| یادښت | یادانښت ـ یادداشت ـ یادداشت ـ نوټ |
| یمال | دواوري ترپان |
| یوځییز | یوهیځایی |
| یونښځنی | یک زنی |
| یوګړي | مفرد (ګرامر) |
| یو سیړ وښی | یک شرهری |
| یون | حرکت ـ سفر |
| یوند ود | طرز حرکت ـ طرز رفتار ـ رسم ګذشت |
| یووون | واحد ـ یونټ |

( پای )

سیدمسافر

## اخخلیـــــک

۱ـ الهام ـ محمد رحیم : روش جدید درتحقیق دستور زبان دري ـ پوهنځی ادبیات ۱۳۴۹ ۰

۲ـ دوکتور پالوال عبدالرازق : پښتونوي مصدر ـ ادبیوهنځی ۱۳۵۰ کابل ۰

۳ـ دکتر پرویز خانلري : ساختمان جمله ـ بخشی از جلد دوم تاریخ زبان فارسی بنیاد فرهنگ ایران ـ تهران ۱۳۴۹ ۰

ـ ساختمان فعل " " " " "

ـ انواع پنجگانه ساختمان فعل جلد دوم تاریخ زبان فارسی بنیاد فرهنگ ایران تهران ۱۳۵۲ ۰

۴ـ دوکتور تږي حبیب الله : نوي ژبپوهنه اوژبنی مسایل ـ پښتو ټولنه ۱۳۴۴ ۰

۵ـ دوکتور دولت محمد : دکلام داجزاو جوړښت ـ زیری ۴۳ گڼــه ۱۳۵۱ کابل ۰

ـ دپښتو ژبی دفعلی اصطلاح گانو واحدونه اوهغوي دقاموسی تشریحاتو ځینی پوښتنی (ژباړه) ـ کابل مجله ـ ۸ گڼــه ۱۳۵۱ کابل ۰

۶ـ دوکتور روان فرهادي : دستور زبان دري براي شاگردان مکاتب ـ لیسهٔ استقلال ثور ۱۳۵۴ کابل ۰

۷ـ دوکتور زیار : دژبپوهنی بنسټونه ـ ادبپوهنځی ۱۳۵۳ ۰

8. E. Coseriu:

Einführung in die Strukturelle Linguistik.

Uni. Tübingen 1969.

9. F. De Saussure:

Grundfragen der Allgemeinen Sprachwissenschaft – Uebersetzer: H. Lommel.

2. Auflage, Berlin 1967.

10. G. Helbig & J. Buscha:

Deutsche Grammatik -- Leipzig 1975.

11. H. Krahe:

Indogermanische Sprachwissenschaft 11 Formlehre.

Hamburg Göschen Band 60 – Berlin 1963.

12. A. Martinet :

Grundlage der Allgemeine n/ Sprachwissenschaft.

Kohlhamer m/ Verlag 1967.

13. J. C. Mayer-Ing. :

Untersuchungen von Satzbau des Paschto.

Hamburg 1966.

14. J. M. Pence : A Tagmemic Grammar of Pashto Clause Structure

Univ. Microfilms Michigan 1967.

15. H. Penzl : A Grammar of Pashto – Washington 1955.

16. D. A. Shafeev : A Short Grammatical Outline of Pashto – Mouton & Co. 1964.

17. U. Ulbrich : Wörterbuch – Linguistische Grundbegriffe.

Verlag Ferdinand Hirt 1972.